تحریری کورس مناظرہ

# تشریحات النابغة

# في

# حل المسائل المختلفة

من ملفوظات

شیخ الاسلام سلطان المناظرین نابغۃ العصر شیخ القرآن والحدیث شہید ابن شہید

ابوالعزیز غلام حضرت غلام الحنفی شہید عرف نابغہ حفظہ اللہ

محرر ومرتب

سید محمد ثواب

ابن سید اسماعیل باچا صاحب

حصہ اولہ

ناشر

مدرسۃ حدیقۃ الاحناف

# مسئله : علم التصوف :

الحمد لله وحده والصلاة والسلام على من لا نبي بعده ولا رسول بعد وهو خاتم النبيين أما بعد ! فاعوذ بالله من الشيطن الرجيم بسم الله الرحمن الرحيم : ﴿ وَأَحْسِنُوٓاْ إِنَّ ٱللَّهَ يُحِبُّ ٱلْمُحْسِنِينَ ﴾ .

نن چې زير بحث کړځو و مسئله متنازعه بيننا و بين الخصم هغه مسئله د علم الباطن او د علم تصوف ده د اهل السنة والجماعة دا عظيم اسم چې جامع دي اربعة مذاهب لره او اربعة طرق لره دد ې چې څو مره مخالفين دي که په هر نوم باند ې ياديږي هغوي خاصتاً اهل حديث او غير مقلدين عرب عجم کې دد ې پرچار کوي چې جماعت د صوفيو د اهل السنة والجماعة نه ، نه دي او دا ددوي بې تحقيقي ده .

ډير کرتې دوي د تعصب نه کار اخلي د يو جماعت جمله عقائد مطالعه نه کړي او غلطې فتوې صادرې کړي لکه تعصب د احنافو سره غير مقلدينو کړې دي چې احناف او خاصتاً امام ابو حنيفه رَحِمَهُ اللَّهُ دوي مرجئه ګڼلي د الإيمان يزيد و ينقص په مسئله باندې ما د مرجئو او د احنافو په مينځ کې فرق وکړ چې هغوي قول بلا عمل قائل دي .

خو هغوي عمل مقوّي د ايمان نه ګڼي او احناف عمل مقوِّي د ايمان ګڼي نو دا لوي فرق دي په مابين د مرجئو او احنافو کې نو احنافو ته مرجئه ويل تعصب محض دي دغه شان يو خطرناکه فرقه چې په نوم د باطنيه باندې ياديده مخکې تيره شوې ده ګمراه فرقه وه د هغوي ډيرې غلطې عقيدې وې .

چې من جمله د هغې نه عقيده د حلول وه خو دا عقيده د حلول د ذات د باري تعالى په نفوسو د عبادو کې دا دوي غير اختياري قول نه وه کړي په مرتبه د سکر مقام کې بلکې قصداً عمداً يې کړې وه دغه فرقه باطنيه د شيعه ګانو نه وي هغوي دا وايي چې خداى تعالى اله چې کوم دي په نفوسو کاملوو ذواتو د هغوي کې حلول کوي .

نو دغه د حلول بعضې الفاظ د وحدت الوجود صوفيوو نه هم صادر دي خو صوفيوو عقيده د حلول نه ده ساتلې د وحدت الوجود کوم قول چې هغوي کړي دي د باري تعالى په محبت کې فنا ته تللي دي او داسې حال پرې طاري شوې دي چې هغوي د خالق د نور نه سوا

هيڅ نه ليدل نو دغه وخت کې هغوي نه غير اختياري لفظ د انا الله يا هو الله آواز وتلې دي ياد ابن عربي نه يا د منصور حلاج نه نو رأي د صوفيه کرامو ددوي باره کې داده چې تقليد د منصور او دصاحبانو د وحدت الوجود حرام دي بل څوک دا نه شي ويلې.

ليکن هغوي په دغه قول کې معذور ګڼي چې دا الفاظ دوي نه په مرتبه د سکر کې وتلې دي داسې وه چې صاحبان د وحدت الوجود د صوفيو نه هغوي وجودي حقيقي غير الله لره نه مني د لا اله الا الله ورد يې کړې وي ډير زيات په دې کې تصور د معنى د لا موجود الا الله کړې وه لا موجود الا الله په دې سړ وي حتى چې د ورځې ديو لک ځل نه هم زيات دا ورد کوي.

دوي دې ته يو وخت د فناء کې ورسيږي چې دا ټو مره مخلوق او اشياء په خارج کې موجود دي په لاموجوده کې ټول نفي کړي چې دا نشته حقيقي وجود ذات الله تعالى دی نو ګوري صاحبان د وحدت الوجود خو د حلول قائل نه شول هغوي خو داسې نه وايي چې خالق په ذات ددې انسان کې ذکر دي حلول يې کړې دي.

صاحبان د وحدت الوجود خالق لره وجودي حقيقي ثابتوي او دا نور اشياو لره يې وجودي ظلي ثابت کړ دا يې ظلال د باري تعالى خلک د هغه صفت وګرځول او د لا اله الا الله لا موجود الا الله په تفسير سره دوي د مخلوق نه داسې حد ته ورسيدل چې دوي ته څه نه ښکاريدل فناء ته لاړل نو دا قول يې وکړ نو دا قول غير اختياري دوي نه وتلې ده خپله دوي معذور دي خو تقليد يې جرام دي صوفيه هم په دې قول کوي او علماء هم په دې قول کوي.

هر چې باطنيه فرقه ده هغوي قائل د حلول د ذات باري تعالى وه په نفوسو د عبادو او اشياو کې نو هغوي خو سوچه بت پرست وه هغوي خو يو بُت کې هم د ذات د خداى تعالى د حلول قائل وه ځکه دا عقيده د مشرکينو محض وه او دارنګې رجل صالح کې او په نفس يا شخص کامل په نفوسو د عبادو کې يې هم د حولول د باري تعالى عقيده وه نو دا باطنيه يوه غلطه فرقه تيره شوې ده.

د عدم تحقيق نه په اقوالو د باطنيو کې ډيرو خلکو تعصب وکړو او داقوالو د باطنيو نه يې قياس په اقوالو د صوفيوو وکړو او صوفيه يې په دوي قياس کړل باطنيه خو ګمراه دي

نو دوي وويل چې صوفيه هم ګمراه دي نو دا مسئله مونږ زير بحث کړه چې دا ډير زيات تعصب شوې ده د صوفيوو سره.

او مونږ دې حنفي علماو نه هم د ګيلې په شکل دا وايو چې دا کوم حنفيان دي اهل سنت دي دا مدرسين علماء د تصوف نه لرې پاتې شوي په حلقه د بيعت د يو شيخ کې نه دي راغلې هغوي بيا صوفيه ګمراه نه ګڼي او ګمراه کن يې هم نه ګڼي حد اقل دومره نظر ورلره ساتي چې دا شيخان محض په درجه د استحباب کې لګيا دي دوي صاحبان د علم خاص نه ګڼي علم باطن ته علم نه وايي او يو اځې علم ظاهر علم ګڼي او خپله علماء د علم ظاهر چې: لا حصة لهم من علم الباطن.

خپله وارثان د محمد عربي ګرځوي او پيرانو ته د وارثانو د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ په نظر نه ګوري.

نو مونږ دا مسئله زير بحث کړه چې يو تعصب د غير مقلدينو منکرينو چې دا يې ضال مضل ګڼلي، من الباطنيه يې ګڼلي چې فرق وشي د صوفيوو او د باطينيو کې فرق دې باطنيه يوه ګمراه فرقه ده او صوفيه اهل د تحقيق دي، اهل د معرفت او اهل د سِر دي، اهل د علم باطن او د طريقت دي، صاحبان د حقيقت دي.

**او دويم هغه علماء دي** !!! چې هغوي د تصوف نه لرې پاتې شو اګر که په عقيده او عمل جوړ دي يا هغه طالبان چې د هغوي د اقوالو نه زير اثر دي هغوي ته دا واضحه کوو چې دا علم يو نه دي چې دا کوم خلکو کې معروفه ده چې راووځه مدرسې ته او دا علم ظاهر ده او علم شريعت ده دا کوه بل علم نشته، نه خبره داسې نه ده.

نصوص به په دې مونږ پيش کړو چې:

**العلم علمان.** علمونه دوه دي يو علم اللسان دي، بل علم القلبي دي.

علم اللساني: **حجة الله عزوجل على العباد.**

او علم قلبي: **فذاك علم نافع.**

دغه ځای کې مونږ اقوال د محدثينو مفسرينو فقهاو ولټوو چې هغوي علم نافع چا ته وايي او علم لساني چا ته وايي نو تاسو ته ما ډير تکليف کړې دي ځکه دا مسئله ډيره اوږده

ده دا مسئله د علم تصوف چند مباحثو لره مونږ مشتمله کړځولې ده چې مبحث اول په تعريف د علم تصوف کې ده .

## د علم تصوف تعريف :

څه علماء دې ته قائل دي چې دې لره الفاظ جامعه کليه مانعه نشته داسې تعريف د علم تصوف نه شي کيدې لکه د نورو علومو چې خلکو کړي .

تعريف جامع مانع د هغې وجه داده چې د علم تصوف لره علماء ددې په معنون او مقصد کې ډيرې زياتې خبرې کړي چې دا عبارت د څه شي نه دي نو څو مره تعريفونه چې ما اوس دلته تاسو ته ذکر کړي دا رسومات دي .

جامع العلوم في اصطلاحات الفنون کې اول جلد صفحه ۲۰۳ د تصوف تعريف کوي فرمايي :

**التصوف تجريد القلب لله تعالى واحتقار ما سوى الله تعالى .**

دا زړه به ته خالص مجرد کړي الله لره که چشتيان قادريان سهروردين حضرات دي نو د **لا اله الا الله** اسباق دې لپاره ورکوي چې مخلوق پريږده خالق سره رابطه ونيسه خالق ته متوجه شه.

که نقشبندي حضرات دي نو اول سبق په قلب کې ورکوي د الله اسم ذات ددې لپاره چې کله دې زړه ته اسم د الله دننه شي نو تجرد د ماسوى الله نه راشي .

**واحتقار ماسوى الله .** او د ماسوى الله به سپک کڼي .

**وقد نقل قدوة العارفين مولانا نور الدين شيخ عبد الرحمن الجامي قدس سره السامي في نفحات الانس من حضرات القدس في احوال شيخ ابي اسحاق ابراهيم بن شهريار رحمه الله انه رأى النبي صلى الله عليه وسلم في المنام وسأل ما التصوف يا رسول الله صلى الله عليه وسلم ؟**

تصوف څه شي ده يا رسول الله ؟

**فقال : التصوف ترك الدعاوي وكتمان المعاني .**

دعوى پريښودل دي او کوم معاني رازونه چې زړه ته القاء شي هغه پټ ساتل دي .

التعريفات جلد اول صفحه ٨٣ کې ذکر دي تعريف د تصوف کوي وايي :

**التصوف الوقوف مع الادب الشرعية ظاهراً فيرى حكمها من الظاهر في الباطن و باطنا فيرى حكمها من الباطن في الظاهر .**

ترجمه : علم حاصلول دي په امورو ظاهرو باندې سره د ادب شرعيو نه چې هغه امورو او نصوصو ظاهرو ته وګوري .

**فيراى حكمها من الظاهر في الباطن .**

و باطنا عطف که په ظاهراً باندې وقوف مع الادب الشرعية باطنا فيرى حكمها من الباطن في الظاهر .

ابن القيم رَحِمَهُ اللَّهُ په مدارج السالكين بين منازل إياك نعبد وإياك نستعين ، اول جلد صفحه ۴۶۵ کې د تصوف معنى کوي :

**قال ابو بكر الكتاني : التصوف خُلقٌ .**

تصوف اتصاف د ځان دي په اخلاقو حميدو باندې .

**فمن زاد عليك في الخُلُقِ زاد عليك في التصوف .**

ترجمه : ته بل سړي ته ګوره چې اخلاق ستا ښه دي که د هغه بل سړي که د هغه اخلاق له تا ښه وه نو هغه تصوف کې له تا ښه دي .

تصوف عبارت له حسن خلق نه دي د چا چې اخلاق ښه وي د چا چې اخلاق ښه نه دي هغه تصوف کې کمزوري دي .

**فان حسن الخلق وتزكية النفس بمكارم الأخلاق .**

دارنګې ابن قيم په مدارج السالكين بين منازل اياک نعبد و اياک نستعين ، اول جلد صفحه ۳۰۷ کې د تصوف معنى کوي دغه معنى ډيرو علماو کړې ده الفاظيې مختصر دي تقريباً جامع مانع دي .

**التخلي من الرذائل والتحلي بالفضائل .**

د رذائلو نه ځان خالي کول او په فضائلو ځان ښائسته کول په فضائلو ځان متصف

کول او د رذائلو نه ځان خالي کول.

دارنګې په مدارج السالکین بین منازل ایاک نعبد و ایاک نستعین، دوهم جلد صفحه ۴۶۴ کې د تصوف معنی کوي:

قال سر السقطي: التصوف اسم لثلثة معان لا يطفئ نور معرفته نور ورعه.

دې عارف وې هغه نور د معرفت دده چې مړ نه کړي له ده نه نور د تقوی دده هسې نه چې عارف شو څه کشوف یې ولیدل د هغې نه وروسته سر شي بیا هر څه کوي نه هغه نور د ورع ختم نه کړي.

ولا يتكلم بباطن في علم ينقضه عليه ظاهر الكتاب او السنة.

په باطن اړخ کې به داسې اقوال نه کوي چې ظاهر نصوص د هغې مخالف وي نو علم باطن دا نه شو چې د شریعت نه به مخالف وي.

رد شو په بعضې قلندریانو چشتیانو باندې چې هغوي نظر دا جوړ کړي چې علم باطن او ظاهر سره فرق لري یعنې متغایرین دي نا داسې نه ده.

كظهر لبطنٍ وبطنٍ لظهرٍ، اسلام للإيمان ايمان للإسلام.

دغه رنګې یو بل سره تړچ دي.

ولا تحمله الكرامات على هتك أستار محارم الله.

او بل دریم دا چې کرامات دې باعث نه کړي ده لره په استارو د محارم الله باندې هسې نه چې هغې کې ور دننه شي هغه پردې اوچتې نه کړي.

چند کرامات وګوري بیا ځان د تکلیف نه اوباسي وایي چې ګنې زه مکلف په شریعت نه یمه.

همدارنګې ابن قیم په مدارج السالکین بین منازل ایاک نعبد و ایاک نستعین، دریم جلد صفحه ۱۸۱ کې فرمایي:

سئل محمد بن علي القصاب استاذ الجنيد البغدادي عن التصوف فقال.

هغه جواب ورکړ:

. اخلاق كريمة ظهرت في زمان كريم مع قوم كرام.

تصوف اخلاق كريمه ته وايي چې په ښه وخت كې ښكاره شي له ښه قوم سره اخلاق كريمه له قوم كرام سره په هر وخت كول دا تصوف ده.

قوم كرام هغه سالكين حضرات دي چې نيتونه يې ښكلي وي.

حلية الاولياء ذا كتاب د امام ابونعيم الحافظ الاصبهاني چې دي خپل سند لري ۱۰ جلد يې په تصوف ليكلي دي اول نه تر آخره پورې دا ثابتوي چې دا څو مره صحابه تير شوي دا ټول صوفيه وو.

خو دا جدا خبره ده چې طرز او طريقه به د چا رياضات په دشتو كې او سيدل وه د چا به څه وه خو صوفيه ټول وه تصوف چې د څه نه عبارت دي نو يو صحابي هم د هغې نه بهر نه وه.

امام غزالي رَحِمَهُ اللّٰهُ د خپل كتاب احياء علوم مقدمه هم په دې لګولي دا څو مره محدثين او فقهاء دي دا ټول صوفيه تير شوي دا ذكر كوي:

**سمعت ابا الفضل نصر بن ابي نصر الطوسي يقول سمعت ابابكر بن المشاقف يقول سألت الجنيد بن محمد عن التصوف.**

هغه جواب راكړ:

**فقال الخروج عن كل خلق دني والدخول في كل خلق سني.**

د هر رذيل خوي نه وتل او په هر ښائسته او بيش قيمته خوي كې ننوتل.

**سمعت ابي الفضل الطوسي يقول سمعت ابا الحسن الفرغاني يقول سألت أبابكر الشبلي ما علامة العارف؟** څه علامه ده د عارف. هغه وويل:

**صدره مشروح وقلبه مجروح.** شرح صدر به لري زړه به يې زخمي زخمي وي.

ما ورته وويل چې دا خو علامه د عارف شوه عارف چا ته وايي. شبلي رَحِمَهُ اللّٰهُ وويل:

**العارف الذي عرف الله عزوجل وعرف مراد الله عزوجل وعمل بما امر الله واعرض عما نهى الله عزوجل و دعا عباد الله إلى الله عزوجل.**

ما ورته وويل چې دا خو تعريف د عارف شو.

**فمن الصوفي فقال من صفا قلبه.** د چا چې زړه صفا وي.

تسمیه د صوفي په صوفي باندې قول راجح دادی چې دا په زمانه د تابعینو دا تسمیه خوره شوه دا په زمانه د صحابوو کې .

دا علم مسمی وه په علم الاخلاص وعلم الاحسان باندې ددې نه تعبیر په احسان او اخلاص سره کیده .

زمانه د تابعینو کې دا مسمی شو په علم تصوف وجه د تسمیې داوه ځکه دغلته چې کوم صوفیه وو هغوي استعمال د جامو د صوف کولو نو د صوفي معنی متلبس په لباس د صوف باندې دوروي هغه دور سره صوفیه به سم داسې وه چې یوه زړه جامه پیوندي د خلکو نه لرې په دشتو کې استوګنه دا به ددوي زندګي وه .

اوس هم داسې فقراء شته دي چې هغوي په سبیلې د ریاضاتو باندې تزکیه د نفوسو کوي نو دې یې معنی دا کوي :

**الصوفي من صفا قلبه** . چې زړه یې صفا وي .

**وسلك طريق المصطفى** صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ و رمى الدنيا خلف القفا .

دنیا یې شاته ویشتلې وي .

دا اعتراضات اوس مخې ته راځي چې صوفیان خو اوس په دغه صفاتو ټول نه دي برابر نو هغه اعتراض یو ائې په دوي اوس مه کوي همدا دیګ همدا شلغم او دا اعتراض باید د علم ظاهر علماء ته هم راجع ده دا کوم ده چې ټول د شریعت پابند دي او په هر جزیه د شریعت یې عمل کړې نو دا نقصان هر چا کې وي .

نو شبلي رَحِمَهُ اللَّهُ ورته وویل :

**و رمى الدنيا خلف القفا و أذاق الهوى طعم الجفا** .

خپلې هوا ته یې د جفاء طعم ورڅکلې وي .

ما ورته وویل چې دا خو صوفي شو .

**ما التصوف؟** تصوف څه ته وایي ؟

**قال: التألف والتطرف والاعراض عن التكلف** .

یو خو تألف ده چې خلک ځان ته نیزدې کول دي هغوي سره الفت کول دي .

دوي به دا بهتره گڼله.

دارنگې شرح نهجة البلاغة لعبد الحميد بن هبة الله بن محمد بن الحسين بن ابي الجحد چې داد ابو حامد عز الدين عبد الحميد بن هبة الله المتوفى سنه ٦٥٦ د هغه تصنيف دي اول جلد صفحه ١٩ کې علم تقسيموي :

ومن العلوم علم الطريقة و الحقيقة واحوال التصوف وقد عرفت ان ارباب هذا الفن في جميع بلاد الإسلام إليه ينتهون وعنده يقفون وقد صرح بذلك الشبلي والجنيد البغدادي والسرسقطي وابويزيد البسطامي وابو محفوظ معروف الكرخي وغيرهم .ويكفيك دلالتاً على ذلك الخرقة التي هي شعارهم إلى اليوم وكونهم يسندونها بإسناد متصل إليه عَلَيْهِ السَّلَامُ.

دليل د اثبات يې داده چې هريو ته ورشي سند متصل لري.

## المبحث الأول :

## الاستدلالات من القرآن الكريم في مسئلة علم التصوف :

بعضې اصطلاحات علومو لره د اصحابو د زمانې نه اوس بدل شوي من جمله د هغې نه زمانه د صحابه كرامو کې علم فقه چې وه مسمى په اسلامياتو باندې علم كلام يا علم عقائد چې وه دا مسمى وه په ايمانياتو باندې او علم طريقت دا مسمى وه په احسانياتو باندې.

همدا وجه وه چې حضرت جبرائيل عَلَيْهِ السَّلَامُ حديث طويل کې د :

أخبرني عن الإسلام ، اخبرني عن الإيمان ، اخبرني عن الاحسان .

سوالونه کړي وه نو دې کې اشاره وه شرف ددې علومو ته نو دا علم التصوف د صحابوو زمانه کې په علم الاحسان مسمى وه همدا وجه ده قرآن عظيم الشان کې زيات ترد دريو اهل دينونو ذكر كيږي چې يهوديان ، عيسويان او امت د حضرت محمد صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ده دا دري واړه دينونو والا دا دواړه جماعت لرل جماعت د مشائخو د طريقت او جماعت د علماء د شريعت .

د قرآن دا اصطلاح ده چې يهوديانو کې کوم خلک اهل طريقت او د تصوف وه د تزکيه باطن كار به يې كوه نو ربانيون به يې ورته وويل.

ربانیون منسوب إلى الرب .

د پاکستان په اصطلاح الله والانو دا منسوب إلى الرب دا پیران وه د یهودو ·

او د یهودیانو چې کوم علماء وه مسمی د قرآن په اصطلاح باندې احبار هغوي ته یې احبار ویل چې دا جمع د حبر ده په معنی د تزین باندې او هغوي به هم بنائسته بنائسته لباسونه اغوستل او یا به مقلوب د بحر شي چې ژور بحرونه د علم وه جامع دوي لره د شپږمې سیپارې سورة مائدة دا آیت ده :

﴿لَوْلَا يَنْهَاهُمُ الرَّبَّانِيُّونَ وَالْأَحْبَارُ عَن قَوْلِهِمُ الْإِثْمَ وَأَكْلِهِمُ السُّحْتَ﴾.سورة مائدة آیت :٦٣.

او هر چې عیسویان هغوي علماء ته قسسین ویل او پیرانو ته یې رهبان ویل جمع د راهب گوشه نشین د خلکو نه چیلي به یې کولې جامع دی دوي لره د او مې سپارې دا آیت کریمه ده :

﴿ذَٰلِكَ بِأَنَّ مِنْهُمْ قِسِّيسِينَ وَرُهْبَانًا وَأَنَّهُمْ لَا يَسْتَكْبِرُونَ﴾ سورة المائدة آیت : ۸۲.

د عیسویانو عداوة مع المسلمین په نسبت سره یهودو ته او مشرکانو ته څه نا څه کم ښکاریده هغوي اشد وه او وجه یې داده :

ذَٰلِكَ بِأَنَّ مِنْهُمْ قِسِّيسِينَ ·

دوي کې علماءو رهبانا او پیران دي ·

الهم لایستکبرون ·

په مقابل د یهودو او مشرکینو هغو مره کبرجن نه دي نفس عداوت کوي خو په مقابل د یهودو کې ددوي عداوت کم ده ورنه نفس عداوت شته ·

زمونږ د دین قرآني اصطلاح داده چې کله علماء د شریعت ذکر کوي نو تعبیر ترې نه په علماء سره کوي په یعلمون سره کوي لکه دا آیت کریمه :

﴿قُلْ هَلْ يَسْتَوِي الَّذِينَ يَعْلَمُونَ وَالَّذِينَ لَا يَعْلَمُونَ﴾

بل آیت : ﴿إِنَّمَا يَخْشَى اللَّهَ مِنْ عِبَادِهِ الْعُلَمَاءُ﴾ ·

او کله چې زمونږ دین د مشائخو د طریقت په قرآن کې ذکر کیږي نو د هغې نه تعبیر

کیږي په محسن سره یا محسنون سره دې نه صوفیاء کرام مراد وي دا خبره چې د محسن نه او محسنون نه مراد صوفیاء کرام دي.

تبلیغي جماعت والا یوه افواه خوره کړې په عوامو کې چې مونږ ته امیرانو ویلي چې په قرآن کریم کې په لسمه سیپاره کې په پیرانو رد شوې ده اشاره یې دې آیت کریمه ته وه:

﴿إِنَّ كَثِيرًا مِّنَ الْأَحْبَارِ وَالرُّهْبَانِ لَيَأْكُلُونَ أَمْوَالَ النَّاسِ بِالْبَاطِلِ﴾ سورة التوبة آيت: ٣٤.

د یهودو پیران ښه وه خو علماء ډیر خراب وو او د عیسویانو علماء ښه وه او پیران یې ډیر خراب وه، نو دغه آیت کریمه کې یې د یهودو علما او راواخستل او د عیسویانو یې پیران راواخستل چې ان کثیر من الاحبار الخ.

نن صبا که څوک دغه آیت کریمه د صوفیانو او پیرانو په خلاف د دلیل په شکل پیش کوي نو د قرآن له اصطلاحات خبر نه دي یا خبر دي خو له تعصب نه کار اخلي له صوفیانو پیرانو سره تعصب کوي.

دلیل په دې باندې چې مراد له احسان علم تصوف ده:

امام مسلم جلد اول صفحه ۲۸ حدیث طویل د جبرائیل عَلَيْهِ السَّلَام را اخیستې:

**قال فأخبرني عن الاحسان إلى آخره.** د احسان تعریف کړي:

**ان تعبد الله كأنك تراه.**

لکه جبرائیل امین سوال د احسان په رابطه وکړو نو رسول پاک صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ورته جواب ورکړ چې احسان:

**ان تعبد الله كأنك تراه.** د الله تعالی عبادت په داسې شان سره کوې لکه ته چې الله ویني او که چیرته هغه ته نه ویني نو هغه خو تا ویني.

او دا مرتبه د شهود ده شهود د ذات باري تعالي نه کیږي بلکه د ذات او صفاتو تجلیاتو هغه نور ګوري او مشاهده یې کړي نو که دا مقام نه وي نو حد اقل:

**فان لم تكن تراه فانه يراك.** که ته چیرته هغه نه ګوري نو حد اقل دومره حضور خو باید وي چې هغه ما له ګوري دا احسان شو.

معالم السنن للخطابي په څلورم جلد صفحه ۳۲۱ کې د احسان معنی کوي:

فان معنى الإحسان ههنا الإخلاص. اخلاص کول په اعمالو کې.

ابن حجر په فتح الباري جلد ۱۲ صفحه ۲٦٦ کې د احسان معنی کوي: الإخلاص.
شرح السنن د امام بغوي اول جلد صفحه ۱۱ د احسان معنی کوي په هغې کې وايي مراد ددې نه:

الإخلاص وهو شرط في صحة الإيمان والإسلام معاً.

نضرة النعيم في مکارم اخلاق الرسول الکريم جلد دويم صفحه ٦٧ کې د احسان معنی کوي، اختلاف شوې په معنی د احسان کې اصطلاحاً:

فإذا اقترن الإيمان والإسلام. چې سره معي راشي.
بيا مراد د احسان څخه:

الاشارة إلى المراقبة و حسن الطاعة.

اشاره په کې مراقبې لره وي، تفکر لره وي او حسن طاعت لره وي.
فيض الباري شرح د بخاري جلد اول صفحه ۲۱٦ کې شاه صاحب څه اخلي دينه:

واعلم ان لفظ الاحسان شامل لجميع انواع البر من الاذکار والاشغال وغيرهما.

لفظ د احسان دلته شامل دي ټولو افعالو د صوفيو لره نه اذکار و نه . او نه شغل نه په اورادو باندې.

والاذکار تقال للاوراد المسنونة.

وما ذکره المشائخ من الضربات والکيفيات والاشغال.

هغه اشغالنا هغه چې ذکر کړي دي مشائخو له ضرباتو نه او له کيفياتو نه دا اشغال دي او دلته احسان اذکارو اشغالو دواړو ته شامل دي.

بيا شاه صاحب وايي:

والطرق المشهورة في التصوف اربعة: النقشبندية والچشتية والسهروردية والقادرية.

والسلسلة السهروردية قد تسلسلة في اجدادنا من عشرة متصلة.

شاه صاحب فرمايي طريقه سهرورديه زمايه نيکونو کې تر لسو پورې راغلې مسلسله.

ثم ما نقل الينا من الاوامر والنواهي والوعد والوعيد .

دا مسمى ده په شريعت سره .

والتخلق بها يسمى الطريقة و حينئذ تنصبغ الاعمال بصبغ الإيمان .

په رنګ د ايمان حقيقي دا اعمال رنګ واخلي .

كما كان في السلف اما اليوم فعلم بلا عمل وايمان بلا تصديق من الجوارح و رب تال القرآن والقرآن يلعنه ثم الفوز بالمقصد الاسنى والنيل بالمآرب الاعلى يسمى حقيقتاً .

هغه بيا حقيقت ده نو شاه صاحب تصريح وکړه په دې باندې په اربعة طرق او اشغال د مريدينو او ضربات كيفيات د مشائخو د اسباقو او اذكارو اوراد مسنونه دا ټول يې داخل کړل په احسان کې .

نو بيا وايي چې ښكاره شوه دا خبره چې :

الطريقة والشريعة لا تتغايران كما زعمه العوام .

طريقت او شريعت يو بل نه جدا او بدل نه دي .

ابن القيم رَحِمَهُ ٱللَّهُ په مدارج السالكين جلد دويم صفحه ٥٧ باندې ليكلي :

ولو كان فوق مقام الاحسان مقام آخر لذكره النبي عَلَيْهِ ٱلسَّلَامُ لجبرائيل .

نو احسان اعلى مقام شو نو وايي :

و لسأله جبرائيل عنه فانه جمع مقامات الدين كلها في الإسلام والإيمان والاحسان نعم الفناء المحمود .

فنآت به راځي چې هغه تحقيق د مقام د احسان دي نو هغه دا دې چې سړي فاني شي :

بحب الله و خوف الله و رجاء الله والتوكل عليه وعبادته والتبتل إليه عن غيره .

دارنګې مدارج السالكين جلد دويم صفحه ٦٥ کې ليكلي دي :

وفي حديث جبرائيل انه سأل النبي صَلَّى ٱللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ عن الاحسان . دغه الفاظ ذكر كوي :

بيا وايي : مراد له دې نه : المراقبة تفكر في صفات الله دي .

دوام علم العبد و تيقنه بأطلاع الحق سبحانه وتعالى على ظاهره وباطنه فاستدامة لهذا العلم واليقين هي المراقبة وهي ثمرة علمه بأن الله سبحانه رقيب عليه ناظر إليه .

وروسته وايي :

سامع لقوله وهو مطلع على عمله كل وقت وكل لحظة و كل نفس و كل طرفة عين و الغافل عن هذا . كوم سړي چې دې مراقبو او تفکر بصفات الله نه غافل شي .

بمعزل حال أهل البداية فكيف بحال المريدين فكيف بحال العارفين .

دا خو حال د مبتديانو ته هم نه دي رسيدلې نو څنګه به دې په حال د مريدانو او عارفانو مشرف شي .

دارنګې مدارج السالکين ابن قيم جلد دويم صفحه ۳۹۹ کې ليکلي :

اليقين هو المكاشفة وهو على ثلاثة وجوه مكاشفة في الاخبار مكاشفة باظهار القدرة مكاشفة القلوب بحقيقة الإيمان .

ومراد القوم بالمكاشفة ظهور الشيء للقلب بحيث يسير نسبة إليه كنسبة المرئ إلى العين.

زړه ته متوجه شي داسې ليدل کوي لکه په سترګو سره .

فلا يبقى معه الشك ولا ريب اصلاً . وهذا نهاية الإيمان وهو مقام الاحسان .

چې شرح صدر وشي بيا قلب صفا شي سترګې فؤاد کولاو شي چې په هغې کې بيا څه اشياء وګوزي نو لکه په رأس العين چې ليدلې وي دغه مقام د احسان ده مراد د احسان نه علم تصوف ده او د محسنين نه صوفياء مراد دي .

تفسير مظهري اول جلد صفحه ۴۳۱ هغه د ابن عباس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ حديث ذکر کوي :

يدخل الجنة من امتي سبعون الفاً بغير حساب .

قاضي صاحب فرمايي :

قلت والذي يظهر من سياق الكتاب والسنة ان هؤلاء الذين لا يحاسبون هم الصوفية العلية المتعشقة .

په دغه صفحه تفسير مظهري وګوري ډير تفصيل يې کړې .
او مقصد د تصوف نه دوه څيزونه دي :
**تصفية القلب وتزكية النفس.** نو تصفيه د قلب او تزکيه د نفس دا نچوړ د تصوف ده.
شرح السنن ابن ماجه جلد اول صفحه ۲۸۳ دلته تا ته دا ښايي چې سواد اعظم کې کومې کومې ډلې داخلې دي :
**فعليكم بالسواد الأعظم** . دا جمعه غفيره مراد ده .
**فهذا الحديث معيار عظيم لأهل السنة والجماعة شكر الله سعيهم فانهم هم السواد الأعظم وذلك لا يحتاج إلى برهان فانك لو نظرت إلى اهل الاهواء بأجمعهم مع انهم اثنان وسبعون فرقة لا يبلغ عددهم عُشُر اهل السنة .**
**واما اختلاف المجتهدين (اى اربعة مذاهب) فيما بينهم كذا الاختلاف لصوفية الكرام (اى اربعة طرق) والمحدثين العظام (اى سبع قراءة) ولقرء الاعلام .**
دغه تفريقې ته ضلالت نه وايي او ګمراهي ورته نه وايي لکه جماعة المسلمين غوندې عقيده نه ساتي .
**فهو اختلاف لا يضلل احدهم الآخر .**
او زمونږ له دوي سره اختلاف د عقيدې دي ځکه دوي له خپل ځان نه بغير بل هر چا ته احنافو ته مشرکين وايي .
**بل قيل الصوفية بخير ما تنافروا ، وقال شيخ الإسلام الانصاري : اى ما لم يأمر أحدهم الآخر بالعرف والمرشد واجتناب المنهيات لم يكن فيهم خيراً .**
ترڅو پورې يو بل ته په نيکي او نيکي ښودونکي چې مرشد ورته وايي امر ونه کوي خير به په کې رانه شي .
**قال شيخ المحدثين امام السيوطي في اتمام الدراية .**
**مونږ دا عقيده ساتو چې :**

نعتقد ان امامنا الشافعي ومالکاً وأباحنيفة وأحمد رضی الله تعالی عنهم و سائر الائمة علی الهدی من ربهم في العقائد وغيرهما . ونعتقد ان الامام اباالحسن الاشعري امام في السنة ای الطريقة المعتقدة و قدموه فيها علی غيره . ونعتقد ان طريقة ابي القاسم الجنيد سيد الطائفة الصوفية علماً وعملاً طريقة مقدم فهو خال عن البدعة دائر علی التدبير والتسليم والتبری عن النفس ينبی علی الکتاب و السنة .

تر دې ځايه چې کومې حوالې ما تاسو ته د احسان په رابطه ذکر کړي نو دا علم تصوف ده علم مراقبه علم سر ده علم اخلاص ده علم يقين ده او علم مکاشفه ده د قلوبو دغه مراد دي.

## اوس هغه آيتونه چې د علم تصوف بيان په کې شوې وي :

قرآن کريم کې چې چيرته محسن او محسنون ګوري نو د پيرانو ترجمه يې کوي :

سورة بقرة آيت: ۱۹۵ : ﴿إِنَّ اللهَ يُحِبُّ الْمُحْسِنِينَ﴾.

معنی دا چې خدای د صوفياء کرامو سره محبت کوي يا لري .

سورة بقرة آيت : ۱۱۲ : ﴿بَلَىٰ مَنْ أَسْلَمَ وَجْهَهُ لِلَّهِ وَهُوَ مُحْسِنٌ فَلَهُ أَجْرُهُ عِندَ رَبِّهِ وَلَا خَوْفٌ عَلَيْهِمْ وَلَا هُمْ يَحْزَنُونَ﴾ . چا چې وسپاره ځان خپل خاص الله لره نو دې محسن دي .

محسن يې وويل مسلم يې ونه ويل ځکه مسلم به وي خو محسن به نه وي عمل کې به يې رياء وي د نفس اصلاح به يې نه وې شوې .

بلی من اسلم ذاته لله .

په خپله دانچه د شريعت ټول احکام راوستل که پنج بناء ده که مستحبات ټول يې په ځای کړل ليکن زړه کې رياء ده نو محسن کې علم اخلاص ته اشاره ده معنی دا چې دده قلب به هم د رياء نه خالي وي ظاهر او باطن ذات الله ته وسپاري .

فله اجره عند ربه ولا خوف عليهم ولا هم يحزنون .

نو دې ولي شو ځکه صفت د ولي ورته راغې .

بيا فرمايي په سورة نساء آيت نمبر ۱۲۵ کې :

﴿وَمَنْ أَحْسَنُ دِينًا مِّمَّنْ أَسْلَمَ وَجْهَهُ لِلَّهِ وَهُوَ مُحْسِنٌ وَاتَّبَعَ مِلَّةَ إِبْرَاهِيمَ حَنِيفًا وَاتَّخَذَ اللَّهُ إِبْرَاهِيمَ خَلِيلاً﴾

استفهام انکاري ده څوک به وي ښه له جهته د دين چې وي سپاره ځان خاص الله لره نو دې محسن ده اتباع د ملت ابراهيمي عقيده به يې جوړه وي .

**اسلم وجهه لله** . علم فقه په کې وي په شريعت برابر وي .

**وهو محسن** . علم احسان او علم طريقت به په کې وي نو دا درې واړه کارونه چې په کې وي .

همدارنګې سورة لقمان آيت ۲۲ : ﴿وَمَن يُسْلِمْ وَجْهَهُ إِلَى اللَّهِ وَهُوَ مُحْسِنٌ فَقَدِ اسْتَمْسَكَ بِالْعُرْوَةِ الْوُثْقَىٰ وَإِلَى اللَّهِ عَاقِبَةُ الْأُمُورِ﴾ . څوک چې ګردن نهاد کړي ځان خپل ذات إلى الله شريعت په ځان ومني خو محسن وي صوفي وي ورسره اخلاص ولري نو :

**فقد استمسك بالعروة الوثقى** .

اوس که يو سړي محسن دي د علم باطن دعوى کوي او استلام د ذات لله تعالى نه دې کړي دده ډانچه د شريعت نه مخالف ده نو دا غټ فاسق ده داد ولايت او طريقت خاوند هيڅ کله نه شي جوړيدې .

لکه دا بعضې خلک چرسيانو ګير خريلو ته هم پيران مشائخ وايي نو هغوي خو من اسلم لله رانغلل چې دا خپل ذات تسليم کړ لپاره د شريعت قواعدو د شريعت ته يې ځان ګردن نهادن که خو ددې سره به محسن وي يعنې زړه به يې خالي وي د ماسوى الله نه او د شرک خفي او جلي نه نو هله به دې مستمسک شي .

**بالعروة الوثقى** او که اسلم وجهه لله وه خو محسن نه وه دې **مستمسك بالعروة الوثقى** په تمامه معنى نه دي او که محسن يې ځان ګڼلو خو تسليم نه وه نو دا خو له سره کيدې نه شي چې دې دې تسليم للشريعة نه وي او د احسان درجه دې ورته را شي دا خو بعيده ده همدا وجه ده الاية .

﴿وَالَّذِينَ اتَّبَعُوهُم بِإِحْسَانٍ رَّضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ وَرَضُوا عَنْهُ وَأَعَدَّ لَهُمْ جَنَّاتٍ تَجْرِي تَحْتَهَا

الْأَنْهَارُ خَالِدِينَ فِيهَا أَبَدًا ﴾ . چا چې تابعداري د صحابو په احسان کې کړې ده .

والذین اتبعوهم بالإیمان یا بالإسلام یې ونه ویل ځکه که ایمان یې ویلې واي نو منافقین به هم عملاً داخل شوې وو په کې عقیده کې به یې اشتباه کړې واې اهل السنة به وي عمل کې به یې فسق وي .

نو دا حکم د الله بیا کله پرې صادقیده چې الایة رضي الله عنهم ورضوا عنه ، نو که مسلم وي اعمال یې برابر وي خو مؤمن نه وي عقیده یې خرابه وي .

او که بالإسلام یې ویلې وي نو فساق منافقین به په کې داخل شوې وي نو په هغوي باندې اعد لهم جنت الایة حکم کله چسپانیږي نو چې وي وویل : والذین اتبعوهم باحسان ، نو اوس احسان بدون د ایمان نه کله راځي او بیا بدون د اسلام نه کله راځي .

اول به یې عقیده صحیح وي ، د ولایت علم یقین او مکاشفې مقام ته چې رسیږي نو دا دوه اویا (۷۲) ډلو کې تر اوسه څوک نه دي رسیدلې او نه به ورسیږي دوي کې خو دې څوک ولي پیدا کړي اول به یې ایمان وي او ایمان په عقیده د اهل السنة کې ده . ثانیاً به علم شریعت باندې تلبس وشي . نو ثالثاً به دې درجې د احسان ته رسیږي .

نو چې هر کله ایمان راغې او د ایمان تقویه یې په بالإسلام وشوه او د هغې نه بعد یې زړه اخلاص بیاموند ریاء نه پاک شو نو خود بخود دا حکم پرې چسپان شو چې : رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُمْ ورضوا عنه .

دارنګې سورة نحل کې رب کریم فرمایلي :

﴿ إِنَّ اللَّهَ مَعَ الَّذِينَ اتَّقَوا وَّالَّذِينَ هُم مُّحْسِنُونَ ﴾ سورة نحل آیت : ۱۲۸ .

یقیناً خدای تعالی د متقیانو سره دي په معیت د نصرت سره او د توفیق او د هغو کسانو سره بالخصوص هم محسنون چې صوفیه دي مع الذین اتقوا کې عام علماء هم راغلل چې کوم متقیان دي او عوام متقیان دي خو بالخصوص والذین هم محسنون نو دا عطف د خاص راغې په عام باندې او عطف د خاص په عام دې کې اشاره وي شرف د خاص لره .

دارنګې سورة بقرة :

﴿وَأَحْسِنُوا إِنَّ اللهَ يُحِبُّ الْمُحْسِنِينَ﴾ الآية خدای تعالی د محسنینو سره محبت کوي.
نو عمل کې اخلاص راولي ریاء لرې کړي علم قلبي حاصل کړي تصفیه د قلب و کوي
خدای تعالی د صوفیو سره محبت کوي.
او دارنګې سورة آل عمران:
﴿أُعِدَّتْ لِلْمُتَّقِينَ الَّذِينَ يُنفِقُونَ فِي السَّرَّاءِ وَالضَّرَّاءِ وَالْكَاظِمِينَ الْغَيْظَ وَالْعَافِينَ عَنِ النَّاسِ وَاللهُ يُحِبُّ الْمُحْسِنِينَ﴾ سورة آل عمران آیت: ۱۳۳-۱۳٤.
دې ځای کې قاضي ثناء الله صاحب وايي:
هم الصوفية الكرام.
دارنګې سورة آل عمران کې فرمايي:
﴿وَاللهُ يُحِبُّ الْمُحْسِنِينَ﴾.
دا صوفیه دي دوي سره خدای تعالی محبت کوي.
دارنګې سورة مائده کې فرمايي:
﴿فَأَثَابَهُمُ اللهُ بِمَا قَالُوا جَنَّاتٍ تَجْرِي مِن تَحْتِهَا الأَنْهَارُ خَالِدِينَ فِيهَا وَذَلِكَ جَزَاءُ الْمُحْسِنِينَ﴾ سورة مائدة آیت: ۸٤.
دارنګې سورة اعراف آیت: ۵٦:
﴿إِنَّ رَحْمَتَ اللهِ قَرِيبٌ مِّنَ الْمُحْسِنِينَ﴾.
همغه ترجمه.
دې سره هغه شبهه د بعضې جهالو دفع شوه چې د خدای نه یریږي نو هر څه چې کوي کورکې وکړه نو شیخ ته تللو کې څه حاجت دي، دوي داسې وايي چې تحلیه بالشریعت د تصوف مقصد دي پیر ته مه ځه تحلیه راوله نو چې راوستي یې شي نو مه ځه نو راتلې نه شي بدون د شیخ نه لکه:
﴿يَا أَيُّهَا الَّذِينَ آمَنُوا اتَّقُوا اللهَ وَكُونُوا مَعَ الصَّادِقِينَ﴾ سورة التوبة آیت: ۱۱۸.
دا مجلس او معیت د صادقینو چې امر راغلې د دې لپاره چې تقوی لازمي شيئ دی.

دارنګې :

﴿إِنَّ اللَّهَ لَا يُضِيعُ أَجْرَ الْمُحْسِنِينَ﴾.

صوفیوو ته اشاره ده.

دارنګې سورة یوسف آیت : ۲۲:

﴿وَلَمَّا بَلَغَ أَشُدَّهُ آتَيْنَاهُ حُكْمًا وَعِلْمًا وَكَذَٰلِكَ نَجْزِي الْمُحْسِنِينَ﴾.

وروسته به عبارتو کې راشي دا اخذ یو اځې ما نه دي کړې ډیر نصوص ما تاسو ته پیش کړې هغه به وګوري هم دد ې آیتونو نه علماء تصوف اخیستې دي.

دارنګې سورة عنکبوت :

﴿وَالَّذِينَ جَاهَدُوا فِينَا لَنَهْدِيَنَّهُمْ سُبُلَنَا وَإِنَّ اللَّهَ لَمَعَ الْمُحْسِنِينَ﴾ سورة عنکبوت آیت: ٦٩.

دې ځای باندې تفسیر راجح دادې چې دا آیت مکي دي نازل دي مخکې له فرضیت د جهاد نه.

بعضو مفسرینو دا عام کړې دي جهاد سیفي مع الکفار ته یې هم شامل کړي او جهاد مع النفس ته یې هم شامل کړي.

خپله حضرت عبد الله ابن عباس صاحب وایي چې د دغه آیت د فرضیت د جهاد نه مخکې نازل شوې نو دا جهاد د والذین جاهدوا فینا یعنې في معرفتنا کوشش وکړي په معرفت زمونږ کې یا :

جاهدوا باتباعنا مع نفسه لنهدینهم سُبل معرفتنا.

د خپل معرفت لارې مونږ ورته ښایو.

وان الله لمع المحسنین.

دارنګې سورة الصافات ایت : ۷۸: ﴿وَتَرَكْنَا عَلَيْهِ فِي الْآخِرِينَ سَلَامٌ عَلَىٰ نُوحٍ فِي الْعَالَمِينَ إِنَّا كَذَٰلِكَ نَجْزِي الْمُحْسِنِينَ﴾. سورة الصافات آیت : ۷۸-۸۱.

دغه بدله مونږ صوفیو ته ورکوو چې دوي لاړ شي نو د خلکو په ژبو ددوي صفتونه جاري کوو لکه د صوفیه په مزارونو او نورو محفلونو عُرسونو کې خلک د هغوي اوصاف

بیانوي.

دارنګې سورة الصافات: ﴿وَتَرَكْنَا عَلَيْهِ فِي الْآخِرِينَ سَلَامٌ عَلَىٰ إِبْرَاهِيمَ كَذَٰلِكَ نَجْزِي الْمُحْسِنِينَ﴾. سورة الصافات آیت: ۱۰۷-۱۱۱.

یعنې وترکنا دا صفت خاص په انبیاء پورې نه دي دا مونږ صوفیانو ته هم ورکوو.

دارنګې همدغه سورة کې فرمایي:

﴿سَلَامٌ عَلَىٰ إِلْ يَاسِينَ إِنَّا كَذَٰلِكَ نَجْزِي الْمُحْسِنِينَ﴾ سورة الصافات آیت: ۱۳۱-۱۳۲.

دا هغه آیتونه وو چې په مضمون د محسن او محسنون سره اخذ د طریقت کیده او علماو کړې وو.

## هغه آیتونه چې اخذ د علم باطن او علم طریقت ترې نه کیږي:

ددې علم ډیر نومونه دي: علم اسرار ځکه اکثر رموز اشارات په کې دي، علم مکنون هم ورته وایي، علم اخلاص علم طریقت هم ورته وایي ځکه د حصول لپاره یې طرق اربعه لري، علم باطن ورته هم وایي ځکه لطائف لري، علم احسان، علم مکاشفه هم ورته وایي، علم لدني هم ورته وایي ځکه واسطه په کې نه وي دغه ټولو نومونو باندې دغه علم مسمی دي. بل استدلال کوو دې آیت نه:

﴿وَعَلَّمْنَاهُ مِن لَّدُنَّا عِلْمًا﴾ سورة الکهف آیت: ۶۵.

وعلمناه ورکړې وه خضر عَلَيْهِ السَّلَامُ ته مونږ د خپل جانب نه علم.

تفسیر قرطبي جلد ۱۱ صفحه ۱۶ ددې ځای دوه ترجمې کوي: ورکړې وه مونږ خضر عَلَيْهِ السَّلَامُ ته علم غیب، أي علم الغیب.

او ابن عطیه یې بله معنی کوي:

كان علم الخضر عَلَيْهِ السَّلَامُ علم معرفة بواطن قد أوحيت إليه لا تعطى ظواهر الاحكام افعاله بحسبها.

وكان علم موسى علم الاحكام والفتيا بظاهر أقوال الناس وأفعالهم.

نو علم د موسى عَلَيْهِ السَّلَامُ علم ظاهر وه علم د خضر عَلَيْهِ السَّلَامُ علم باطن وه خو دلته به يوه خبره ياد ساتي چې بعضې جهال پيران وايي چې موسى عَلَيْهِ السَّلَامُ ته د علم باطن نه حصه نه وه ناخبره داسې نه ده.

علم باطن دوه شقه لري يو شق د علم باطن چې کله سير وشي مرتب د اخلاص حاصله شي رياء ختمه شي جلي خفي شرکونو نه زړه پاک شي تزکيه د نفس وشي د رذائلو خبيثو نه خو بيا کله چې دده سير تام شي او دې د عروج نه بعد نزول ته راشي نو دده کار بيا په ارشاد کې وي.

څه نور صوفيه داسې دي په همدغه سير وکړي چې اتصاف په همدغه اوصافو حميده وو راشي نو چې کله د عروج نه نزول ته راشي نو دده کار په تکوين او تصرفاتو کې وي.

د موسى عَلَيْهِ السَّلَامُ حق کې داسې ويل نه دي په کار چې د علم باطن نه لرلو د علم باطن هغه شق چې جانب د ارشاداتو دي او تحليه بالشريعة دي علم اخلاص ده، تزکيه د نفس ده، تصفيه د قلب ده هغه څنګه ورته نه وو حاصل چې ورته نه وه حاصل نو پيغمبر څنګه شو دغه شيان خو چې چا کې نه وي فاسق ورته ويل کيږي نو داد علم باطن مفادات هغه کې وو نو چې کله دده عروج نه بعد نزول تام وشو دې په ارشاداتو مکلف شو چې ته خلکو ته دعوت د شريعت ورکوه.

او خضر عَلَيْهِ السَّلَامُ په تصرفاتو او تکويناتو کې وظيفه لرله نو د علم باطن يو جهت د ارشاداتو ده بل جهت يې د تکويناتو ده دغه د تصرفاتو تکويناتو حصه د علم باطن موسى عَلَيْهِ السَّلَامُ سره نه وه.

که څوک ددې نه استدلال کوي چې موسى عَلَيْهِ السَّلَامُ حصه د علم باطن نه، نه لرله غلطه خبره ده ځکه علم باطن خو عبارت ده د علم اخلاص او احسان وغيره نه، دا څنګه موسى عَلَيْهِ السَّلَامُ ته حاصل نه وه دا ورته حاصل وه صرف په امورو د تکوين کې شغل نه وه مکلف نه وه په دې باندې هغه کومه دعوى يې چې کړې وه خداى نه وه خوښه کړې چې اعلم په دې زمانه کې زما نه، نشته.

نفسي دا خبره ښه خبره وه صحيح وه اعلم بالشريعة له دې نه بغير څوک نه وه دې باني د شريعت د يهوديت وه خو دا خبره دغه ځاى کې د خداى تعالى نه وه خوښه شوې ځکه دې د

خواصو نه وه او خواصو عبادو ته په معمولي خبره هم دنيا کې يو څه تکليف ورکوي نو بيا يې مامور کړ چې لاړ شه خضر عَلَيۡهِ السَّلَامُ ته مشهوره واقعه ده .

نو دغه واقعه که څوک په غور سره قرآن کريم کې وګوري نو د علم باطن شواهدو ته هيڅ ضرورت نشته خپله سړي پوهيږي چې څه علم مکنون هم شته چې څه عباد هغې کې لګيا دي نو دا خو يې يو شق ده چې تکوين ده هغه جانب د ارشاد ته چې راشي په هغې کې ډير مخلوق لګيا دي .

تفسير البغوي جلد ۵ صفحه ۱۸۸ باندې ليکلي :

**من عندنا و علمناه من لدنا علما .**

ددې ترجمه کوي :

**اى علم الباطن الهاما** . دا علم باطن وه القاء ده ته کيده .

**ولم يكن الخضر نبيا عند اكثر اهل العلم .**

تفسير اللباب لابن عادل جلد اول صفحه ۳۴۴۶ باندې هم دغه مضمون ذکر کړي . تفسير الماوردي ، النکت والعيون جلد ۳ ص ۳۲۵ تفسير جلد ۳ صفحه ۱۷۱ ، تفسير العزبن عبد السلام جلد اول صفحه ٦٢٧ ، دا ټولو دا ذکر کړي چې دا علم باطن وه .

تفسير البيضاوي جلد ۳ صفحه ۵۰۸ باندې ليکلي :

**فان موسى كان بحر علم الظاهر والخضر كان بحر علم الباطن .**

تفسير اللباب لابن عادل جلد اول صفحه ۲۷٦۰ کې ليکلي :

**واما عبارة عن علم الباطن ورياضة القلوب ففي القران من مباحث هذا العلم ما لا يكاد يوجد في غيره .**

او د علم باطن نصوص په قرآن کې دومره ډير دي چې په بل کتاب کې نشته لکه دا آيت کريمه :

﴿ خُذِ الۡعَفۡوَ وَأۡمُرۡ بِالۡعُرۡفِ وَأَعۡرِضۡ عَنِ الۡجَاهِلِينَ ﴾ سورة اعراف آيت : ۱۹۹ .

يا دا آيت : ﴿ إِنَّ اللّٰهَ يَأۡمُرُ بِالۡعَدۡلِ وَالۡإِحۡسَانِ ﴾ ( سورة نحل آيت : ۹۰ ) .

د احسان نه اخذ کوي چې دا طريقت ته اشاره ده إلى غير ذلك.

تفسير روح المعاني جلد ۳ صفحه ۶۱.

أَلَمْ تَرَ إِلَى الَّذِينَ يُزَكُّونَ أَنفُسَهُمْ كعلماء السوء من اهل الظاهر.

هغه علماء د ظواهرو باندې رد کوي چې کوم د تصوف نه لرې پاتې دي ليکي:

أَلَمْ تَرَ إِلَى الَّذِينَ يُزَكُّونَ أَنفُسَهُمْ كعلماء السوء من اهل الظاهر الذين لم يحصلوا من علومهم سوى العجب والكبر والحسد والحقد وسائر الصفات الرذيلة بَلِ اللهُ يُزَكِّي مَن يَشَاء كالعارفين به الذين لا يرون لأنفسهم فعلاً.

دا يې هغه معنى کړې چې کومه امام رباني صاحب کړې ده وايي صحيح صوفي هغه دي چې شل کاله يې د چپې اوږې فرشته قلم پورته نه کړي، او شل کاله بعد ورته په خپل ذوق او خپل زړه کې ځان ورته د کافر نه ښکته ښکاره شي ځکه وايي کيداى شي کافر به ايمان راوړې او زما به خاتمه خرابه شي نو دې وايي:

لا يرون لأنفسهم فعلاً.

ځان لپاره بالکليه ښه عمل نه ګوري چې ما به ښه عمل کړې وي.

دا حال په تصوف کې شته او دا دومره سړي باندې غالب شي له اند. ازې نه زيات هغه چا ته يې معلومات کيږي چې څوک صوفي وي هر څوک خپل ځان باندې علم لري داسې حال ورته رسيږي چې تمام بازار کې څومره فساق فجار ګوري خپل ضمير کې ځان ترې ښکته ګڼي. په زړه کې زه خو همداسې يم تاسو نه خبر نه يم او دا حال به د صوفي خپل ذوقي وي ځان به ورته انتهائي کمزورې ښکارې له جهته د اعمالو نه او دعوو نه به ځان ډير لرې ساتي.

تفسير روح المعاني جلد ۸ صفحه ۳۴۳ باندې ليکي:

ما قاله الإمام الغزالي في الاحياء وهو ان علم الآخرة قسمان علم مكاشفة وعلم معاملة اما علم المكاشفة فهو علم الباطن وهو غاية العلوم وهو علم الصديقين والمقربين وهو عبارة عن نور يظهر في القلب عند تطهيره وتزكيته من الصفات المذمومة.

علم معامله علم د شريعت ده علم مکاشفه علم د طريقت دي.

بيان المعاني جلد ۴ صفحه ۱۹۶ کې ليکي :

آتيناه رحمة الخ أنه علم الباطن و على هذا اكثر العارفين و أهل العلم .

تفسير الثعالبي جلد ۲ صفحه ۴۳۰ باندې ليکي ، خضر عَلَيْهِ السَّلَامُ موسى عَلَيْهِ السَّلَامُ ته فرمايي :

يا موسى إني على علم من علم الله علمنيه لا تعلمه يريد علم الباطن .

مراد يې په دې سره علم باطن ده .

و أنت على علم من علم الله علمكه الله لا اعلمه يريد علم الظاهر .

مراد يې علم ظاهر ده .

تفسير حقي جلد ۵ صفحه ۱۷۶ باندې دفعه د شبهاتو د بعضې خلکو يې کړې لکه بعضې خلک وايي چې داد خانقاګانو او د مزارونو جوړولو ته څه ضرورت دي چې دومره زيات مصرفونه کول او آباديانې جوړول ، دې وايي که دا اعتراض د پيرانو په دربار کوي نو بيا يې په مدارسو هم وکړي :

يقول الفقير : البناء اما لدرس العلم الظاهر و اما لتعليم علم الباطن فاذا كان بناء المدارس من البدعة الحسنة فليكن بناء الخانقاه منها ايضا .

نو چې جوړول د مدارسو له بدعاتو حسنو نه شوه نو جوړول د خانقاګانو دې هم دغه شان شي لکه بعضې جهال دا وايي چې دا دومره دربار ته څه ضرورت وه دا غر او پش ته څه ضرورت دي نو دا اعتراض دې کله په حقانيه کړې چې دا دومره بلډنګونو ته څه ضرورت دي نو چې داد بدعاتو حسنوو نه ده چې اداره د علم ظاهر ده نو هغه هم اداره د علم باطن ده هغه هم د بدعاتو حسنوو نه ده ولې :

بل بناء اشرف لشرف معلومة فمن قال انه ليس في مكة والمدينه خانقاه .

بلکې د علم باطن خانقا اشرف ده ولې ځکه له شرافت د معلوم ده نه په علم ظاهر کې ستا معلومات حلال او حرام دي او په علم باطن کې معلومات ستا معرفت د ذات د باري تعالى ده .

امام رباني رَحِمَهُ اللَّهُ هم دغه دليل نيولي دي چې شرافت د علم له وجهې د شرافت د

موضوع نه وي او په علم باطن کې چې علم اخلاص علم مکاشفه دي علم معرفت الله دي هغه له موضوع د علم ظاهر نه بهتر دي بهر حال علماء ظواهر دې ته ترجیح ورکوي او صوفیه هغې ته ترجیح ورکوي دواړه به شواهد لري.

**فمن قال انه ليس في مكة والمدينة خانقاه.**

که څوک وايي چې په مکه مکرمه کې یا مدینه منوره کې ولې خانقاه نشته نو دا هم بې ځایه اعتراض دي دا سړې ګرځیدلې نه دي اوس هم بعضې جهال وايي دا پیران هلته ولې نشته.

په مکه معظمه سید العلوي المالکي القادري د شیخ عبد القادر جیلاني صاحب سلسله چلوي دوهابیانو اهل حدیثو سخت مخالف د٥ په فروعو کې شافعي مذهبي دي او په طریقت کې قادریه سلسله چلوي ډیر زیات نفوس لري په عربو کې باقاعده هرمابنام نه وروسته پاؤ کم یو ساعت بیانونه په ټي وي ریډیو باندې کوي او دا ما خپله لیدلي اوریدلي دي.

او په درس کې دا برګ رومال نه پریږدي دا ډیر عجیب کار ده دلیل دا وايي چې دا علامه د غلطو خلکو ده دا سره رومالونه به نه راوړي یو ځل ما خپله ولید چې سور دسمالي یې له خپل درس نه وشړه او دده یو کتاب هم ده چې نوم یې:

**محمد الانسان الكامل.**

دا دده تصنیف دي نور هم ډیر زیات تصانیف لري او په مدینه منوره کې هم پیران شته د طرق اربعو خو تقریباً اتیا (۸۰) کاله زیات او کم به کیږي چې د نجدیانو حکومت پرې راغلي او په ابتداء د حکومت ددوي په طائف کې پنځه زره (۵۰۰۰) پیران او علماء د همدغو خوارجو له خوا حلال شول نو پیران به څنګه پاتې شي.

نو دې دا اعتراض ذکر کوي اسماعیل حقي صاحب که څوک وايي چې مکه مدینه کې خانقاوې نشته:

**فما هذه الخوانق في البلاد الرومية وغيرها. ونهى عن الخانقاه والتردد اليه لجمعية الذكر واصلاح الحال.**

او بیا نهي کوي د خانقاهاتو نه شک او تردد کول په دې کې د جمعیت د ذکر لپاره او د

اصلاح الحال لپاره .

**بالخلوة و الرياضة فانما قاله من جهله و حماقته و نهي عن ضلالته وشقاوته فهو ليس بأمر بالمعروف ولا ناه عن المنكر بل بالعكس كما لا يخفى و لقد كثر أمثال هذا المنكر الطاعن في هذا الزمان مع انهم لا حجة لهم ولا برهان والله المستعان .**

دې نه اخوا ما تاسو ته ډيرې حوالې د کتابونو او عبارات د طريقه متعلق ذکر کړې دي :

غرائب القران و رغائب الفرقان جلد ۲ صفحه ۱۳۵ ليکي :

**وهذه حال اکثر من اوتي نصيبا من علم الظاهر ولم يؤت حظاً من علم الباطن فهم أهل الغرة بالله .**

دا حال د هغه چا دي دا نکار چې کوي چې هغه د علم ظاهر نه حصه لري او د علم باطن نه يې نه لري ، او دوي په الله جل جلاله ډير مغروره دي .

**فكيف حال المغرورين اذا جمعهم الله.**

**څه به وي حال د مغرورينو چې الله جل جلاله يې را جمع کړي .**

**حاشيه السندي على ابن ماجه جلد ۱ صفحه ۲۰۸ باندې له دې حديث سره ليکلي :**

**طلب العلم فريضة على كل مسلم ومسلمة .**

دې ځای کې علماء د علم ظاهر له دې حديث نه علم ظاهر اخلي او حال دا دی علم مطلق راغلې او مطلق چې کله وصف وي په خپل اطلاق به جاري کيږي **کل** انواعو ته به شامل وي د طلب د علم فرض دي **العلم** علمان نو لکه څنګه چې علم ظاهر فرض دي د غسې علم باطن هم فرض دي په علم ظاهر کې .

فنون مدون علم ظاهر نه دي دا قنطرة د علم ظاهر ده وسيله مقصود ته مقصود وي وسيله واجب ته واجب وي نو هر کله چې منتهی د علم ظاهر فرض وه هغه بدون د دغه فنونو نه حاصليده نو دا هم فروض **كفايه للغير** شول داد هغه غير له وجهې فرض شول .

دغه شان علم باطن علم احسان علم اخلاص هم فرض دي په **كل احد** فرض عين دي البته

ددې د حصول دا طريقې چې کومې دي دا قنطرې ددې علم دي دا څلور سلسلې دا قنطرې ددې علم دي که بغير له دې نه يې څوک کوي او حاصلولې يې شي نو بيا در باندې لازمه نه ده او که نه يې شي حاصلولې بيا درباندې لازمي دي دا به يې مثال شي .

که يو سړي وايي علم ظاهر فرض ده خو مدرسې ته تلل خو فرض نه دي بلکې مستحب دي که دې علم ظاهر د ممبر نه يادوي د تقرير نه يادوي د کيسټ نه يادوي د مدرسې نه يادوي خو علم ظاهر فرض ده .دا طريقه د حصول يې بيا ندب مستحب ده .

دغه شان علم باطن فرض ده هغه علم اخلاص دا طريقه د حصول چې دې يې په څه کوي په جهاد يې کوي په جهاد هم کيدې شي هغلته هم تزکيه د نفس راځي په رياضاتو کوي روژې نيسي او که په اربعة طرق باندې کوي که بيا نه شي حاصليدې بيا دا لازم ګرځي .

علامه سندي ليکي :

اختلف في العلم الذي هو فريضة . اختلاف شوې چې دا فرضي علم کوم يو دي .

فقيل هو علم الاخلاص . دا علم اخلاص دي .

مأمور به كما أن العلم مأمور به و شهوات النفس تخرب مباني الاخلاص من المأمور به فصار علم ذلك فرضاً وقيل معرفة الخواطر و تفصيلها فريضة لان الخواطر في نشأة العقل و بذلك يعلم الفرق بين لمة الملك و لمة الشيطان و قيل هو طلب علم الحلال حيث كان أكل الحلال فريضة و قيل هو علم البيع والشراء والنكاح والطلاق إذا أراد الدخول في شيء من ذلك يجب عليه طلب علمه و قيل هو علم الفرائض الخمس التي بنى عليها الإسلام و قيل هو طلب علم التوحيد بالنظر والاستدلال والنقل و قيل هو طلب علم الباطن وهو ما يزداد به العبد يقينا و هو الذي يكتسب بصحبة الصالحين و الزهاد والمقربين فهم ورثة علم النبيين صلوات الله وسلامه عليهم أجمعين .

فيض القدير د علامه مناوي شرح الجامع الصغير جلد ۴ صفحه ۳۵۳.

طلب العلم فريضة على كل مسلم دلته يې هم هغه عبارت د سهروردي صاحب رانقل کړي مناوي صاحب .

اختلف في العلم الذي هو فريضة قيل هو علم الاخلاص و معرفة آفات النفس وما يفسد

العمل لأن الإخلاص مأمور به كما أن العمل مأمور به وخدع النفس وغرورها وشهواتها يخرب مباني الاخلاص فصير عليه فرضاً و قيل معرفة الخواطر و تفصيل عللها منشأ الفعل و ذلك يفرق بين لمة الملك و لمة الشيطان و قيل هو علم نحو البيع والشراء و قيل علم التوحيد بالنظر والاستدلال و النقل علم الباطن وهو ما يزداد به العبد يقيناً و هو الذي يكتسب لصحبة الأولياء فهم ورثة المصطفى صلى الله عليه وسلم .

قال الغزالي في المنهاج العلم المفروض في الجملة ثلاثة .

فرض علمونه دري دي : علم التوحيد دا علم كلام دي ، وعلم السر دا علم باطن دي :

وهو ما يتعلق بالقلب و مساعيه و علم الشريعة .

او علم ظاهر دي دا دري علوم د فرضو نه دي ګورې دا عبارت رد کوي د هغو مدرسينو په قول باندې چې اول يې مني نه او که يې مني نو مستحب ورته وايي ډير علماء زمونږ اهل السنة وايي دا مستحب ده بلکه مستحب بيعت ته وو ايي خانقاه مدرسې تګ ته مستحب ووايه خو دا علم ته خو مستحب مه وايه دا علم خو فرض دي دا طريقه د حصول يې مستحب ده .

دارنګې فيض القدير شرح الجامع الصغير جلد ۴ صفحه ۴۳۰ باندې ليکي :

علم الباطن سر من أسرار الله عزوجل وحكم من حكم الله يقذفه في القلوب من يشاء من عباده .

د علم ظاهر مرکز ذهن دي او د علم باطن مرکز قلب دي او قلب کې چې انشراح راشي نو دا علم بيا ډيره فراخه لمن لري په مقابله د هغه علم کې هغه علم لره څه حدود دي څه خاصه اندازه ده ورلره وروسته به راشي چې د علم باطن نه منکر وي دې به په خطره کې له وجهې د سوء خاتمې نه آخره خاتمه به يې خرابه شي .

او کمه درجه د علم باطن داده چې د علم باطن د اولياء حال تسليم کړې او دا خپله د علم باطن نه يوه برخه ده .

د فيض القدير عبارت شروع ده :

قال الغزالي رَحِمَهُ ٱللَّهُ: علم الآخرة قسمان علم مكاشفة و علم معاملة و علم المكاشفة هو علم الباطن وذلك غاية العلوم و قد قال بعض العارفين من لم يكن له نصيب منه.

چا ته چې د علم باطن نه برخه نه وي.

يخاف عليه سوء الخاتمة. په ده باندې ويره د سوء خاتمې وي.

وادنى النصيب منه التصديق وتسليمه لأهله.

چې ومني علم باطن او اهل د علم باطن چې علم باطن هم شته او څه اهل يې هم شته چې انكار ونه كړي.

دارنګې فيض القدير شرح الجامع الصغير جلد ۴ صفحه ۵۱۰:

وقال الامام مالك: علم الباطن لا يعرفه الا من عرف علم الظاهر.

نه پيژني علم باطن لره مګر هغه څوک چې پيژني علم ظاهر لره.

فمتى علم الظاهر وعمل به فتح الله عليه علم الباطن.

چې علم ظاهر وكړي او بيا عمل هم پرې وكړي وروسته بيا ورته د علم باطن دروازه خلاصه شي.

ولا يكون ذلك الا مع فتح قلبه وتنويره.

او علم باطن د انشراح صدر سره ده چې فتحه د قلب ده او دا منور شي په نور سره.

بيا فرمايي:

ليس العلم بكثرة الرواية انما العلم نور يقذفه الله في القلب يشير إلى علم الباطن.

دا فقهاء ټول صوفيه دي ځكه اجتهاد بدون د تصوف نه كيدې نه شي ځكه استنباط څه ته وايي: طلب النبط، نبط څه ته وايي نبط هغه اوبه اول مستخرج من الماء كوهي وكنه چې كله كوهي كې اوبه راشي دغه اول اوبه خيرنې چې رابنكاره شي دغې ته نبط وايي نو استنباط معنى راويستل د اوبو له كوهي نه.

نو مجتهد يو نص پيدا كړي په هغې ډير تفريعات كوي بعيد بعيد دغو تفريعاتو ته ذهن نه وي رسيدلې قلب رسيدلې وي دده د قلب انشراح شوې وي په قلب كې ګوري دغو

دغو شيانو ته اشاره ده داسې هيڅ کله هم نه شي کيداى چې دا امامان دې صوفيه نه وي.

علم الروايه چې علم باطن ونه لري هغه به خامخا متضاد اقوال لري هغه به خامخا داسې خبرې کوې چې بيرته به يې خپله رد کوي د هغې مثال ابن تيميه دي که په علم الروايه او علم الشريعت شي نو تر اوسه پورې داسې عالم چې دې په رواياتو جامع د اقوال د فقهاو وه ډير کم به پيدا شي علم يې بالکل مسلم دي امت لره دې ډير ژور ملا و، ډير آحاديث ورته ياد وه خو اقوالو کې يې تضاد وه ډير زيات رد کوي په هغه خلکو چې دعوى يې د اسلام ده او مرتد دي لکه دده يو تصنيف دي الفرقان بين اولياء الرحمن و اولياء الشيطن جلد اول صفحه ۲۱۴ کې ليکي :

**واذا قال انا محتاج إلى محمدٍ في علم الظاهر دون علم الباطن او في علم الشريعة دون علم الحقيقة فهو شر من اليهود والنصارى.**

ګوره دلته دې علم باطن مني چې شته دي که څوک دا علم باطن د شريعت محمدي مخالف ګڼي نو دا شر ده.

**الذين قالوا ان محمداً رسول إلى الاميين دون اهل الكتاب فان اولئك امنوا ببعض و كفروا ببعض فكانوا كفارا بذلك وكذلك هذا الذي يقولُ ان محمداً بُعث بعلم الظاهر دون علم الباطن آمن ببعض ما جاء به و كفر ببعض فهو كافر.**

وهابيان ټول وايي چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ په علم باطن نه دې راغلې نو دده په قول وهابيان کافر شو او قائل دذې خبرې چې نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ مبعوث په علم باطن نه وه :

**وهو أكفر من اولئك لان علم الباطن الذي هو علم ايمان القلوب ومعارفها واحوالها هو علم بحقائق الإيمان الباطنية وهذا أشرف من العلم بمجرد الاعمال الإسلام الظاهرة.**

علم باطن يې ومنه او منکر د علم باطن ته يې کافر وويل او علم باطن ته يې اشرف علم وويل دا اوس د ابن تيميه د کتاب عبارت وو خو ليکن چې کوم سړې خپله د تصوف نه لرې پاتې شوې وي نو د هغه په اقوالو کې حتماً تعارض وي او دا به اوس تاسو ته ښکاره شي :

**اقامة الدليل على ابطال التحليل ابن تيمية جلد ۳ صفحه ۱۹۸ :**

**وان علم الباطن الذي كانوا يدعون حقيقته هو ابطال الرسالة التي بعث الله بها محمداً.**

علم باطن چې دا خلک يې دعوى د حقيقت کوي دا وايي د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ رسالت لره مبطل دي د علم باطن دعوى چې څوک کوي د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ د رسالت نه منکر دي.

بنه اوس دا عبارت له هغه مخکې عبارت سره څنګه لړوي هلته وايي که څوک يې منکر شو کافر دي دلته وايي چې څوک علم باطن علم حقيقت ثابتوي د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ د رسالت نه منکر ده نو اوس تاسو څه فتوى ورکوي دا ځکه چې ابن تيميه علم باطن نه لرلو او حافظ د رواياتو وو نو دا متضاد اقوال يې په کتابونو کې پيدا کيږي کله يو څه وايي او کله بل څه وايي، يو کتاب يې يوه خبره کوي بل کتاب يې بله خبره کوي.

نو مجتهدين چونکې ټول صاحبان د علم باطن وو هغوي چې به يو قول وکړو نو بل قول به د هغې متضاد نه وو او که داسې يو څه پيدا شوي نو رجوع کړي لکه حديث وروسته ورته رسيدلې يا داسې شته خو داسې متضاد اقوال د هغوي په کتابونو کې نه پيدا کيږي.

**بيرته اوس خپل ځای ته لاړشئ** !!! دا رنګې فيض القدير شرح الجامع الصغير جلد ۴ صفحه ۵۱۳ باندې ليکي:

**العلم علمان فعلم بالقلب فذلك هو العلم النافع.**

دې حديث باندې شرح کوي دا علم نافع ده نافع په دې معنى چې خپل صاحب ته نفع ورکوي هم په دې دنيا هم په هغې دنيا.

**وعلم على اللسان فذلك حجة الله على ابن آدم فإن صاحب العلم اللساني الذي لم يتأثر منه.** صاحب د علم لسان وي خو ده تأثر ترې نه وي اخيستې.

**فانه محجوج عليه.** دا علم پرې دليل دي ويلې شي ده ته:

**لما تقولون مالا تفعلون.**

ممکن ده حمل د دې حديث على علم الظاهر والباطن چې دا دي حمل شي په ظاهر او علم باطن علم نافع دا علم باطن شو علم اللسان دا علم ظاهر شو.

**قال ابو طالب المكي علم الباطن و علم الظاهر اصلان لا يستغني احدهما عن صاحبه بمنزلة**

الإسلام والإيمان .

دا دوه اصله دي چې استغناء يو نه بل باندې نه شي کيدې لکه ايمان او اسلام .

مرتبط كل منهما بالآخر كالجسم والقلب . نه جدا کيږي يو د بل نه .

او چا دا فرق کړی :

علم الباطن يخرج من القلب وعلم الظاهر يخرج من اللسان فلا يجاوز الآذان .

د غوږ نه اخوا نه دي .

وهذا لا ينصرف إليه اسم العلماء الذين هم ورثة الانبياء اذ هم العلماء العاملون .

دا علم ظاهري محض چې علم باطن ونه لري نه راجع کيږي ده ته نوم د هغه عالم چې وارث د نبي دي وايي دا هغه عالم نه ده چې وارث الانبياء دي ځکه وارثان د انبياء :

اذ هم العلماء العاملون الابرار المتقون الذين آل اليهم العلم الموروث بصفة التي كان عليها عند المورّث .

نو د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ علم خو په ده حجت نه وه نو وارث به هم هغه وي چې علم پرې حجت نه وي نو دا به علم نافع وي بنه استدلال يې کړي .

دا رنګې حواشي الشرواني والعبادي جلد ۷ صفحه ۱۵۲ د علم باطن معنی کوي :

اى عن الخصال الرديئة والحميدة للنفس وهو التصوف .

علم باطن ته علم التصوف ويلې شي .

دا رنګې مغني المحتاج إلى معرفة الفاظ المنهاج جلد ۱۱ صفحه ۱۶۸ :

وعد الغزالي في مقدمة المستصفى من العلم الديني علم الباطن يعني علم القلب وتطهيره عن الأخلاق الذميمة واختلف في الراسخ في العلم فقيل هو من برت يمينه وصدق لسانه واستقام قلبه .

مطالب اولى النهي جلد ۱۸ صفحه ۳۶۶.

وقال الشيخ تقي الدين ، دلته د ابن تيميه د الفرقان هغه عبارت رانقلوي تقي الدين

ابن تیمیه ده :

او اعتقد ان لِأحدٍ طريقا إلى الله من غير متابعة محمد صَلَّى ٱللَّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ او لا يجب عليه أتباعه او قال انا محتاج إلى محمد صَلَّى ٱللَّٰهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ في علم الظاهر دون علم الباطن او هو محتاج إليه في علم الشريعة دون الحقيقة فهو كافر .

دا يې د ابن تیمیه هغه عبارت را نقل کړ.

دارنګې عوارف المعارف للسهروردي جلد ۱ صفحه ۲۳ طلب العلم فریضة کې خبره کوي :

و قيل هو طلب علم الباطن وهو ما يزداد به العبد يقيناً وهذا العلم هو الذي يكتسب بالصحبة ومجالسة الصالحين من العلماء المؤقنين والزهاد المقربين .

دا عبارتونه د علمناه من لدنا علما د علم باطن او د علم باطن سره قریب معاني چې چا کړې وه هغې کې ذکر شول .

## بل استدلال د قرآن عظیم الشان نه :

﴿رَبَّنَا وَابْعَثْ فِيهِمْ رَسُولاً مِّنْهُمْ يَتْلُو عَلَيْهِمْ آيَاتِكَ وَيُعَلِّمُهُمُ الْكِتَابَ وَالْحِكْمَةَ وَيُزَكِّيهِمْ﴾.

داد قراء و مجودينو وظيفه ده .

ويعلمهم الكتاب والحكمة د علماء د علم الظاهر او علم الشريعة وظيفه ده .

ويزكيهم چې پاکوي دوي لره له دنس د شرک جلي او خفي نه شرک خفي رياء ده په قرآن عظيم الشان کې څلور ځايه دا صفات نبي عَلَيْهِ ٱلسَّلَامُ ته راغلي دي .

يو ځای کې تعليم الكتاب مقدم دي په يزكيهم باندې دري ځايه تزکيه مقدمه ده په علم باندې .

سورة آل عمران آيت : ۱۶۴ کې فرمايي :

﴿لَقَدْ مَنَّ اللهُ عَلَى الْمُؤْمِنِينَ إِذْ بَعَثَ فِيهِمْ رَسُولاً مِّنْ أَنفُسِهِمْ يَتْلُو عَلَيْهِمْ آيَاتِهِ وَيُزَكِّيهِمْ﴾

تزكيه مقدمه ده .

﴿ وَيُعَلِّمُهُمُ الْكِتَابَ وَالْحِكْمَةَ وَإِن كَانُوا مِن قَبْلُ لَفِي ضَلَالٍ مُّبِينٍ ﴾ .

دارنګې سورة جمعه آيت : ۲ کې فرمايي :

﴿ هُوَ الَّذِي بَعَثَ فِي الْأُمِّيِّينَ رَسُولاً مِّنْهُمْ يَتْلُو عَلَيْهِمْ آيَاتِهِ وَيُزَكِّيهِمْ وَيُعَلِّمُهُمُ الْكِتَابَ وَالْحِكْمَةَ وَإِن كَانُوا مِن قَبْلُ لَفِي ضَلَالٍ مُّبِينٍ ﴾ .

دارنګې تفسير السعدي جلد صفحه ۷۴ کې :

ويزكيهم اى يطهر اخلاقكم و نفوسكم بتربيتها على الأخلاق الجميلة وتنزيهها عن الأخلاق الرذيلة و ذلك كتزكيتكم من الشرك إلى التوحيد و من الرياء إلى الاخلاص ومن الكذب إلى الصدق و من الخيانة إلى الأمانة و من الكبر إلى التواضع و من سوء الخلق إلى حسن الخلق ومن التباغض والتهاجر والتقاطع إلى التحاب والتواصل والتوادد وغير ذلك من أنواع التزكية .

دارنګې تفسير روح المعاني جلد ۱ صفحه ۳۸۵ :

ويزكيهم اى يطهرهم من ارجاس الشرك وانجاس الشك وقاذورات المعاصي .

په دې کې اشاره ده الى التخلية لکه په تعليم الکتاب والسنة کې اشاره ده الى التحلية .

ولعل تقديم الثاني على الاول لشرافته .

دا ده استدلال ده خو تام نه ده ځکه تقديم د تعليم تزکيه باندې يو ځاى راغلې او تقديم د تزکيې درې ځايه راغلې بيا به هغه خلک هغه استدلال وکړي .

اوس دلته بعضې مفسرين دا اخلي چې مراد اخذ د زکوة د اموالو دي چې ماليې صفا شي نو دې وايي :

والقول بان المراد يأخذ منهم الزكاة التي هي سبب لطهرتهم او يشهد لهم بالتزكية والعدالة بعيد .

دارنګې تفسير الدر المنثور في التفسير بالمأثور للسيوطي جلد ۱ صفحه ۷۱۷ :

وأخرج ابن جرير عن ابن جريج في قوله ويزكيهم قال يطهرهم من الشرك .

جلي او خفي نه .

ويخلصهم منه . اخلاص ورکوي .
دارنګې تفسير القرطبي جلد ۱۸ صفحه ۹۲ :
ويزكيهم أي يجعلهم أزكياء القلوب بالإيمان ، قاله ابن عباس : ويزكيهم أي يطهرهم
من رذائل الأخلاق و دنس النفوس . تفسير ابن كثير جلد صفحه .
نو دا ټولو مفسرينو د تزکيه نه تزكيه د نفوسو او قلوبو واخيسته هغه مراد ده .
تردې ځايه دا مبحث چې وه استدلالات من القرآن الكريم وه او تائيدات د مفسرينو ، محدثينو او څه عبارات د علم فقهې په کې وه .

## المبحث الثاني : الاستدلالات من الاحاديث :

دې کې به ذهن خلاص کړو چې علم يو نه دې علمونه دوه دي دويم علم هم حاصلول په كار دي . الترغيب والترهيب لقوام السنة جلد ۳ صفحه ۹۴ :
أخبرنا علي بن محمد الأنباري قال أخبرنا أبو عمر بن مهدي قال أخبرنا اسماعيل الصفار قال حدثنا عمر بن مدرك قال حدثنا عبد السلام بن صالح قال حدثنا يوسف بن عطية قال حدثنا قتادة عن الحسن عن انس .
دا حديث به وروسته راشي دا په حسن باندې مرسل دي خو دلته دې سند کې عن الحسن عن انس رَضِيَ اللَّهُ عَنْهُ ارسال ختم شو انس صاحب په کې معلوم شو چې ده د انس صاحب نه رانقل کړي قال قال رسول الله صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ......
العلم علمان ، علمونه دوه دي علم في القلب يو علم د زړه دي .
فذاك العلم النافع وعلم على اللسان فذاك حجة الله على بني آدم . (سنن الدارمي جلد ۱ صفحه ١١٤).
هلته دا حديث د حسن بصري ده موقوف دده دي خپله وايي مقطوع دي :
اخبرنا مكي بن ابراهيم قال حدثنا هشام عن الحسن قال قال صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ : العلم علمان فعلم في القلب فذلك العلم النافع وعلم على اللسان فذلك حجة الله على بن آدم .

ددې له هغې سره تعارض نشته چې يو سړي وايي چې دلته تعارض راغې دا مقطوع دي
هغه مرفوع وه ډير کرته يو سړي مجلس کې خبره کوي خپله يې کوي.
هغه خبره يې حديث کې کتلې وي کله يې مرفوع کوي بيا يو مسئله وي وايي رسول اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ داسې فرمائلې دي، بله ورځ همغه خبره د عوامو مجلس کې ته کوي خو حديث نه پيش کوي او مسئله ذکر کوي.
حضرت حسن خپله خبر ذکر کړي خو خبر دده له حديث د رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ نه اخذ شوې وه.
شعب الايمان جلد ٣ صفحه ٢٩٣:
أخبرنا أبو عبد الله الحافظ قال سمعت اسماعيل بن محمد يقول سمعت جدي يقول سمعت علي بن حكيم الاودي يقول قال الفضيل بن عياض: العلم علمان علم باللسان و علم بالقلب فذاك العلم النافع واما العلم باللسان فذلك حجة الله على خلقه.
مسند الربيع بن حبيب جلد ١ صفحه ٣٦٥:
عن جابر بن زيد أن النبي صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قال: العلم علمان علم باللسان فذلك حجة الله على ابن آدم وعلم بالقلب فذلك العلم النافع.
مصنف ابن ابي شيبة جلد ١٣ صفحه ٢٣٥ دلته حسن بصري مرسل ذکر کوي:
حدثنا ابن نمير قال حدثنا هشام عن الحسن قال قال رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ العلم علمان علم في القلب فذاك العلم النافع و علم على اللسان فتلك حجة الله على عباده.
مراسل د حسن بصري په اتفاق د امت سره مقبول دي بيا هم سره ددې ترغيب الترهيب د قوام السنة هغه پرې دال ده چې دلته راوي انس صاحب دي.
الزهد لابن المبارک جلد ٧ صفحه ٤٠٧ هم دا حديث ذکر کوي.
جامع العلوم والحکم محقق جلد ٣٨ صفحه ٢٠:
العلم الذي على اللسان وهو حجة الله كما في الحديث: القرآن حجة لك او عليك، فأول ما يرفع من العلم العلم النافع.

اول چې عبادو ته او چتيږي او ختميږي هغه علم نافع ده دا علم النافع بيا څه شي ده :

**هو العلم الباطن الذي يخالط القلوب ويصلحها .**

زړه ته راشي زړه صالحه کړي اول به مخ د ځمکې نه دا علم ختم شي ګورئ نن صبا څومره کم شوي په ختميدو دي .

**ويبقى علم اللسان حجة فيتهاون الناس به .**

او دا سپکاوې اوس په مختلفو طريقو شروع ده ، علماء قتلولې شي دهشت ګرد ورته ويلې شي دا تهاون دې کنه .

**ولا يعلمون بمقتضاه لا حملته ولا غيرهم .**

خپله علماء به هم عمل نه کوي چې حاملين د علم دي او غير به يې هم نه کوي سپک به شي چې سپک شو .

**ثم يذهب هذا العلم بذهاب حملته .**

دا علم به هم لاړ شي ځکه حمله به يې لاړ شي هغه مشائخ عاملين او علماء مشران به هم ختم شي .

**فلا يبقى إلا القرآن في المصاحف وليس ثَمَّ من يعلم معانيه ولا حدوده ولا احكامه .**

او هيڅ به هم پاتې نه شي په مصحف د قرآن نه به وي دغلته څوک چې پوه شي په صحيح معنى د دې باندې نه به يې حدود څوک مني او نه احکام .

**ثم يسرى في آخر الزمان .**

شپه به وي د شپې آخرې زمانه کې به لاړ شي دا الفاظ د قرآن .

**فلا يبقى في المصاحف ولا في القلوب منه شيء باالكلية وبعد ذلك تقوم الساعة .**

**الأربعين في التصوف للنيسابوري .**

څلويښت آحاديث د علم تصوف متعلق ذکر کوي جلد ۱ صفحه ۱۵ **باب اباحة الكلام في باطن العلم وحقيقتها .**

خپل سند سره حديث ذکر کوي له حضرت ابي هريرة رضي الله عنه نه :

ان رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ قال : ان من العلم كهيئة المكنون .

څه علم دي چې پټ دي ، لا يعرفه عالم نه دي په دې باندې .

إلا العلماء بالله عزوجل . عالماً بالله نه مراد عارفين بالله دي .

فاذا نطقوا به لا ينكره الا اهل الغرة .

تفسير روح المعاني جلد ۸ صفحه ۳۴۳ :

وكان في قوله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ ان من العلم كهيئة المكنون لا يعرفه الا العلماء بالله تعالى فاذا قالوه لا ينكره الا اهل الغرة بالله تعالى اشارة الى ذلك والمراد باهل الغرة علماء الظاهر الذين لم يؤتوا ذلك .

الفردوس بمأثور الخطاب جلد ۳ صفحه ۴۲ : علي بن ابي طالب رَضِيَ اللهُ عَنْهُ يې راوي دي :

علم الباطن سر من سر الله عزوجل وحكم من حكم الله يقذفه في قلوب من يشاء من اوليائه .

دارنګې فيض القدير شرح الجامع الصغير جلد ۴ صفحه ۴۳۰ .

علم الباطن کې خبره کوي دا حديث ذکر کوي :

سر من اسرار الله عزوجل وحكم من حكم الله يقذفه في قلوب من يشاء من عباده قال الغزالي علم الآخرة قسمان علم مكاشفة و علم معاملة و علم المكاشفة هو علم الباطن و ذلك غاية العلوم و قد قال بعض العارفين من لم يكن له نصيب منه يخاف عليه سوء الخاتمة وادنى النصيب منه التصديق وتسليمه لاهله .

دارنګې تفسير مظهري جلد ۱ صفحه ۷۴۸ :

ولا يتصور التنزه عن المعاصي .

متصور نه ده کمال تنزه له معاصيو نه الا بدوام الحضور مګر چې زړه ذاکر شي .

وصفاء القلوب والنفوس وذا لا يتصور الا بجذب الله بتوسط المشائخ .

صفائي دقلوبو او نفوسو متصور نه ده مګر په رابنکلو سره چې د خالق لخوا وشي په واسطه د مشائخو .

**فعليك التشبث بأذيالهم** . لازم دي په تا چې لمن ددغه مشائخو ونيسي .

**فهم قوم لا يشقى جليسهم ولا يخاف انيسهم** .

دارنګې تفسير المظهري جلد ۱ صفحه ۹۳۸:

**فلا بد لقطع مادة الغفلة** . لابدي ده چې دغه ماده د غفلت درنه ختمه شي په :

**في التشبث بأذيال الصوفية حتى يسقط عن البصائر كل ما عدالله تعالى** .

دارنګې تفسير مظهري جلد ۱ دا صفحه مرقم ده د ټولو جلدونو :

**ومن لم يفهم كلام الصوفية** . څوک چې نه پوهيږي په خبرو د صوفيوو .

**فعليه التشبث بأذيالهم** . ددوي لمن دې ټينګه کړي .

**حتى يتبين لهم انه الحق** .

دارنګې تفسير مظهري جلد ۱ صفحه ۷۱۱ :

**واما العلم اللدني الذي يسمون اهلها بالصوفية الكرام** هر چې علم لدني ده چې صاحبانو ددې علم ته صوفيه وايي :

**فهو فرض عين** . دا فرض عين دي .

**لان ثمراتها تصفية القلب** . ځکه ددې ثمره تصفيه د قلب ده .

**عن الاشغال بغير الله تعالى واتصافه بدوام الحضور وتزكية النفس عن رذائل الأخلاق من العجب والكبر والحسد وحب الدنيا والكسل في الطاعات وايثار الشهوات والرياء والسمعة وغير ذلك** .

تفسير نسفي جلد ۲ صفحه ۲۴۷ : ﴿وَعَلَّمْنَاهُ مِن لَّدُنَّا عِلْمًا﴾ کې ذکر کوي :

**يعني الاخبار بالغيوب وقيل العلم اللدني ماحصل للعبد بطريق الالهام** .

دارنګې روح المعاني جلد ۷ صفحه ۷۴ :

وَإِنَّهُ لَذُو عِلْمٍ لِّمَا عَلَّمْنَاهُ اشارة الى العلم اللدني وهو على نوعين ظاهر الغيب وهو علم دقائق المعاملات والمقامات والحالات والكرامات والفراسات وباطن الغيب وهو علم بطون الأفعال.

ويسمى حكمة المعرفة وعلم الصفات ويسمى المعرفة الخاصة وعلم الذات ويسمى التوحيد والتفريد والتجريد وعلم الأسرار القدم ويسمى علم الفناء والبقاء.

داد صوفيه كرامو خپل اصطلاحات دي.

تفسير روح المعاني جلد ۸ صفحه ۳۴۱ :

وفي رسالة القشيري طرف منه والذي ينبغي ان يعلم ان كلام العارفين المحققين وان دل على انه لا مخالفة بين الشريعة والطريقة والحقيقة لكنه يدل ايضاً على ان في الحقيقة كشوفاً وعلوما غيبية.

ولذا تراهم يقولون علم الحقيقة هو العلم اللدني وعلم المكاشفة وعلم الموهبة وعلم الاسرار والعلم المكنون وعلم الوراثة.

دا اصطلاحات ددوي دي.

علامه صابوني زياته ترجيح علم تصوف ته وركوي دا معصر ده دي زمانه کې.

دارنګې صفوة التفاسير للصابوني جلد ۱ صفحه ۱۱۲ :

فائدة العلم نوعان كسبي و وهبي اما الاول فيكون تحصيله بالاجتهاد والمذاكرة.

هر چې ثاني ده وهبي ده :

فطريقة تقوى الله والعمل الصالح كما قال تعالى واتقوا الله ويعلمكم الله وهذا العلم يسمى العلم اللدني اى الوهبي وآتيناه من لدنا علما هو العلم النافع الذي يهبه الله لمن يشاء من عباده المتقين.

وإليه أشار الإمام الشافعي بقوله شكوت الى وكيع سوء حفظي فارشدني الى ترك المعاصي اخبرني بان العلم نور ونور الله لا يعطي لعاصي.

وايي دغه اشاره چې علم ته يې نور ويلي دا علم قلب ده .

**غرائب القرآن و رغائب الفرقان للنيسابوري جلد ۲ صفحه ۴۳۰ :**

**يَا أَيُّهَا الَّذِينَ أُوتُوا الْكِتَابَ.**

ددې تاويل کوي مراد د اوتوا الكتاب نه علماء الظاهر اخيستې .

**يَا أَيُّهَا الَّذِينَ أُوتُوا الْكِتَابَ ظاهراً ولم يؤتوا علم باطن الكتاب .**

چې علم ظاهر لري علم باطن نه لري .

**آمِنُوا بِمَا نَزَّلْنَا على الاولياء من علم باطن القرآن .**

وايي :اى علماء د علم الظاهر تصديق وکړي د هغه حالاتو چې مونږ اولياء ته ورکړي چې هغه علم د باطن دي .

**مُصَدِّقًا لِّمَا مَعَكُم. من العلم الظاهر لأن أهل العلم اللدني يصدقون اهل العلم الظاهر .**

مشائخ د علم باطن وايي تصديق او عزت کوي د علماء د اهل الظاهر .

**ولكن أهل العلم الظاهر يصعب عليهم تصديق علوم الاولياء لانه لا يناسب عقولهم .**

وايي علماء په مشائخو باندې رد کوي مشائخ په علماء رد نه کوي هغه ددوي علوم تسليموي خو دوي د هغوي علوم نه تسليموي ځکه ددې عقل يې وايي درک نه کوي .

روح المعاني هم يوه داسې عجيبه معنى کړې ده :

**﴿إِنَّ الَّذِينَ آمَنُوا ثُمَّ كَفَرُوا ثُمَّ آمَنُوا ثُمَّ كَفَرُوا ثُمَّ ازْدَادُوا كُفْرًا﴾ .**

ددې معنى روح المعاني په باب الاشارات کې دا کړې ده :

**ان الذين آمنوا بحقيقة الإيمان .**

وايي هغه چې په بيعت د يو شيخ کامل کې راشي دا حقيقة الايمان ده .

**ثم كفروا .** لږ وخت تيريدو سره تردد ورته راشي نو دا شيخ پريږدي ترې نه لاړ شي دا هغه کفران ددې نعمت دي .

**ثم آمنوا .** بيا چې دا نور مريدان او حالات د هغوي وګوري نو بيرته يې شوق پيدا شي بيا راشي او دې سلسله کې داخل شي .

**ثم ازدادوا كفرا** . لږ وخت بعد بيا لاړ شي کله چې بيا لاړ شي نو ازدياد د کفر وکړي ازدياد د کفر دادی چې خلکو ته وايي دې شيخ ته مه ورځي زه ورغلې وم څه ورسره نه وو څه کمال نه لري ...... دغه زما وس کې وه خبر مې کړي بيا بنه غرق شي .

بعضې علماء لکه ملا علي قاري صاحب د حضرت ابي هريرة رَضِيَ اللهُ عَنْهُ د هغه حديث نه اخذ کړي چې وايي :

**حفظت من رسول الله صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ وعائين فاما احدهما فبثثته فيكم و اما الآخر فلو بششته قطع هذا البلعوم يعني مجرى الطعام** .

د نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ نه دوه لوخي ما ياد کړي دي يو مې وشينده چې علم الرواية وه .

و اما الآخر نو دې ځای کې بعضې علماء وايي چې دا اسامي د اهل فتنوو وه .

او ملا علي قاري رَحِمَهُ اللهُ مرقات کې د غه ځای باندې تحقيق کوي او دې کې علم باطن داخلوي چې د نه شو وويلي دا علم السر وه علم د مکاشفې وه چې د هغې نه خبرې نه کيږي دا ځو مره چې مونږ کوو ددې اجازه صوفيه نه ورکوي .

ځکه داد زړه خبرې دې هغه ځوک پرې پوهيږي چې حيات قلبي ولري په زړه کې څه حرکت کيفيت او انشراح راشي او په زړه کې څه القاءت الهامات راغلل همغه پوهيږي نو کوشش وکړي چې تعصب ونه کړي او دغه علم چې په مختلفو نومونو ياديږي دا يو مفروض علم دي .

دا ټول فقهاء دې ته ذهاب کوي چې علم يو نه دي بلکې العلم علمين علمو نه دوه دي نو کوشش وکړي اولاً د يو خکلي شيخ سره بيعت وکړي او عوامو ته يې هم تلقين وکړي .

بنائسته طريقه دې کې استخاره ده استخاره ددې لپاره ده چې تاته تعين د طبيعيت د شيخ وشي تعين د طبيعت د شيخ ځکه ضرور وي چې طبيعتونه په جلال او جمال کې قسمين لري .

غټ تقسيم د طبعياتو انسانيو جلال او جمال ته شوې ده لکه چې ستا طبيعت جمالي وي او ستا د شيخ طبيعت جلالي وي نو ستا او د هغه مينځ کې د باطن لاره نه خلاصيږي .

ددې وجه داوي چې ته بيا معترض جوړيږي شيخ جلالي طبيعته په يو معمولي امر کې

ډير تشدد کوي هغه به اتباع د شريعت وي خو هغه خبره ډير په سختي کوي او دا به ستا په طبيعت نه لږيږي چې بده و لږيده نو ته معترض جوړيږي او په دې سره سد الباب راځي .

او که شيخ ستا جلالي نه وه جمالي وه ته جلالي نو بيا ډير کرته هغه يو څا سره نرمي کوي بيا ته معترض جوړيږي ، نو دا استخاره د تعيين د طبيعت لپاره وي .

او امام مالک رَحِمَهُ اللَّهُ چې کوم قول ده :

**من تفقه ولم يتصوف فقد تفسق .**

نو اشاره همدې خبرې ته ده علم تفقه يې وکړ او تصوف يې ونه کړ نو علم مفروض ترې پاتې شو علم اخلاص نه لري تزکيه د قلب يې نه ده شوي .

مرقات جلد ۱ صفحه ۵۲۶ دا عبارت نقل کړي .

**قصيدة شافعي :**

امام شافعي رَحِمَهُ اللَّهُ نصيحت کوي خپل کتاب کې په اشعارو کې :

**فقيهاً و صوفياً فكن ليس واحداً** . فقيه او صوفي يو مه جوړيږه .

**فاني وحق الله اياك انصح .**

په ذات د خداى مې دې قسم وي زه تاسو ته نصيحت کومه .

**فذاك قاص لم يذق قلبه تقى .**

دا يو اځې فقيه دليل باز دې د زړه تقوى يې نه ده څکلې .

**وذاك جهول** ، او دا يو اځې صوفي چې ده عالم نه ده نو جاهل ده .

**كيف ذوالجهل يصلح** ، نو جاهل به د بل اصلاح څنګه وکړي .

دا شعر په قصيده د امام شافعي رَحِمَهُ اللَّهُ جلد اول صفحه ۳۶ کې ده .

د علماء ديوبند چې کوم اکابر علماء دي دا ټول صوفيان وه په يو نه يوه طريقه کې دوي داخل وه .

د نن زماني چې کوم مشران علماء د اهل السنة دي او شيوخ دي دا ټول صوفيان دي خامخا د يو څا مريدان دي نيکان او صالحان د درس او تدريس سره د تصوف کار هم کوي

تربيت د مريدانو كوي .

دغه شان حديث كې راځي : چې يو سړي نيک او صالح شي نو خداى تعالى دې په دوستي ونيسي يو ولايت عام دي الله ولي المؤمنين .

يو : لا يزال العبد يتقرب الي بالنوافل حتى احببت .

داد بخاري شريف حديث ده نوافلو باندې اتيان كوي زه يې محبوب ګرزوم دغه ولايت خاص ده نو چې كله دې په ولايت خاص كې قدم كيږدي خداى تعالى جبرائيل امين ته حكم كوي چې دغه سړي ما په دوستي ونيوه ته يې هم په دوستي ونيسه .

بيا جبرائيل عَلَيْهِ السَّلَامُ د اوم آسمان فرشتو ته اعلان كوي چې الله تعالى فلانكي عبد په دوستي نيولې تاسې يې هم په دوستي ونيسي .

دا سلسله همداسې شروع وي د يو اسمان فرشتې بل اسمان ته اعلان كوي دا خبره ځمكې ته راورسيږي اعلانونه وشي چې الله تعالى فلاني عبد په دوستي نيولي تاسو يې هم په دوستي ونيسي دا خبره عامه شي په خلكو كې .

نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ فرمايي د هغې نه بعد دغه بنده ته د عبادو په زړونو كې ځاى وركړي .

نو اصل كمال صالحيت مصلحيت او د هلاكت نه بچ كيدل دي خپله به هم صالح وي او د بل اصلاح به هم كوي .

زما يو استاذ وه د شپې ناوخته يولس (۱۱) بجي راغي زما دې كافيه سره ډيره مينه وه دا مې كتله او دا شرحې مې پرې كتلې هغه رانه لاړو دولس (۱۲) بجي بيا راغي زه بيا كتاب ته ناست ومه صوفي وه زما شيخ هم وه د طريقت محترم ضياء الله صاحب مبارک رَحِمَهُ اللَّهُ يو وه (۱) بجه بيا راغي زه هماغسې ناست ومه كتاب مې كتلو راغې كيناستلو دا كتاب او شرحې يې رانه ټولې كړې راته وې ويل پشاور ملا زه باجوړ كې ومه ما ته يې وويل چې دا كافيه سره د شرحو به ياده كړي ډيره غټه مكتبه يې وه اشاره يې ورته وكړه په لاس سره وايي دا به څوک ګوري دا به څوک يادوي ما ورته وويل چې څه شي وكمه وايي دا دعاء مه غواړه چې بس ګوره ګوره دا ټول كتابونه بلكې دا دعا وغواړه چې خدايا شرح صدر راكړي وايي په ما يو كال داسې تير شوې دي چې ما به كتاب را واخيسته پاڼي به مې وشمارلې كتاب كې به چې څه پراته وه هغه به زما حافظه كې بيا پراته وه .

وایي دا کتابونه ګوره دا ټول ما د اول نه آخره پورې پاڼې شمارلي دي خو چې څه په کې وه زما ذهن کې دي اوس وایي د انشراح صدر دعاء وغواړه په مطالعه دا نه پوره کیږي چې استاذ نه یې وایه یا مطالعه کوه په دې شیانو نه پوره کیږي که مکتبو ته لاړې دومره کُتب لیکلې شوې دي چې دا عمر صرف کړي نظر نه به یې هم ونه باسي حتی چې نومونه به یې هم یاد نه کړي پاتې خو لا د هغې دننه مسائل شول نو هر مانځه نه وروسته دا دعاء کوي چې :

﴿رَبِّ اشْرَحْ لِي صَدْرِي وَيَسِّرْ لِي أَمْرِي وَاحْلُلْ عُقْدَةً مِّن لِّسَانِي يَفْقَهُوا قَوْلِي﴾.

بل خاصو خاصو صوفیاء کرامو ته چې ستاسو وړاندې د ذهد او صلاح یقین وي هغلته ورځي ورسره کیني حدیث شریف کې راځي چې کوم سړي مو ولیده چې چپ ناست وه ځانته وه له خلکو نه کیني ورسره :

فانه یلقي الحکمة . دا خلکو ته حکمت القاء کوي .

﴿وَمَن يُؤْتَ الْحِكْمَةَ فَقَدْ أُوتِيَ خَيْرًا كَثِيرًا﴾.

الدين النصيحة .

دین د خیرخواهي نوم وي او زما ورونه یې ټول مسلمانان یې دغه د خیر مشوره درکوم درته چې څوارلس کاله مو علم ظاهر کې تیر کړل خیر دي یو پنځه شپږ کاله دې علم تصوف کې هم تیر کړي وګوري بیا تاسې چې ددې ثمره بیا څومره ده او دې کې څومره خیر وي خو چې صالح وي د بیکاره سړي په لاس ورنه شي او هغه شیخ هم داسې وي چې لکه څنګه علم ظاهر کې دا څلور مذهبه دي او څلور مذهبه اصول لري جزئیات لري ائمه لري .

دغه شان علم باطن کې امامان دي امام د طریقې نقشبندي شاه بهاوالدین نقشبند رَحِمَهُ اللهُ د اولینو نه دي او ثانیاً امام رباني مجدد الف ثاني رَحِمَهُ اللهُ تفصیل د جزئیاتو ددې طریقې کړې دي شیخ عبد القادر جیلاني رَحِمَهُ اللهُ د قادرې شریفې امام دي او شیخ شهاب الدین سهروردي عوارف المعارف لوي کتاب یې دا غټ عالم وه د سهروردي طریقې امام دي او معین الدین چشتي اجمیري دا د چشتي طریقې امام دي .

دا سلسلې خو مخکې نه راچلیدلې وي خو دوي دې ته جزئیات فروعات او دې ته تفصیل ورکړل دې ته څه اصول وضع کول دا دوي کړې دي په دې نسبت چشتي قادري

نقشبندي سهروردي دا نسبتونه کیږي دوي ته لکه په علم ظاهر کې حنفي حنبلي مالکي شافعي دا نسبتونه مونږ کوو چونکې امامان په دې کې راغلل هغوي ته منسوب شول دغه شان په طریقو کې هغوي ته منسوب شول نو دغه آئمه لري او چې هر شیخ ته لاړي او هغه نقشبندي وه نو مخکې نه د نقشبندي څه کُتب وګوره چې نقشبندیه د لسان ذکر ورکوي که نه جهري ذکر سره موافق دي که مخالف دي نقشبندي حضرات د ذکر جهر سر سخت مخالف دي او بل لساني اسباب په دې کې نه وي چې ته ورشي د نقشبندي شیخ ته او هغه تاته ووایي چې مثال په طور تا ته ووایي چې یا لطیف وایه یا ودود وایه لکه دا خو اسماء الحسنی دي دا په څلورو طریقو کې د یوې طریقې سبق هم نه دي نو دا هسې اوراد ورکول دي او دا سلسله نقشبندیه بیا نه ده یا چا ته وایي استغفار وایه نو استغفار نه ته چا منع کړي یې هغه خو حدیثونه ثابت دي وایه یې کنه سل ځل مسنون دي هغه وایه نو هر سلسله کې مو چې خوښه وي استخاره وکړي.

تفسیر قرطبي لیکلي چې استخاره باید اوه (۷) شپې مسلسل وشي اوه (۷) شپو کې دي چې څه ولیدل هغې پسې باید ذهاب وشي.

## حکایت:

ما ته څه طالبان راغلي وه د دارالعلوم سرحد نه په هماغه کال فارغیدل د دوري طالبان وه چې راغلل نو په صوفیانو یې اعتراضونه لرل او ښه احناف وه نو دري واړه ما سره ناست وه ښه قدر مې ورکړو ما ته یې وویل چې د مسلم په مقدمه کې په صوفیوو رد راغلي.

ما ورته وویل څه دې په کې وایي: **ما رأیت من الصالحین اکذب في الحدیث منهم**، په حدیثو کې لوي دروغجن د صالحینو نه مانور نه دي کتلي وایي دا صالحین پیران دي کنه ما ورته وویل چې دا خو ته ترجمه کوي چې مراد له صالحانو دلته پیران دي پیران خو صاحبان د علم باطن دي او لاندې په منهاج کې امام نووي صاحب بیا دا تفصیل هم کړي دې چې اصلاً صالحین چې وي دا صادقان وي دوي ته چې څوک حدیث ووایي نو هغه وایي چې زه هم داسې دروغ نه وایمه نو په نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ دروغ به لا څنګه وایمه نو هغه په بل مؤمن هم د خیر ګمان کوي وایي څه دروغ به نه وایي دا به حدیث وي زر عمل شروع کړي نو وایي دا ددوي عیب نه دي دا یې صفت دي ځکه چې دوي صادقین دي.

خو دوي ضد کولو وايي نه دا صوفيه مراد دي دا ددوي عيب دي ما وويل ګوره امام نووي صاحب منهاج کې وايي دا يې صفت دي عيب نه دي وايي چې دلته يې وويل چې دا دروغجن دي دروغ نو څه صفت وي ما ورته وويل چې دا امام مسلم ويلي وايي هاو ما ورته وويل چې ګوره هغه نشته چې زه ترې پوښتنه وکړم ته يې د قول مستدل يې تا نه تپوس کوم چې دا امام مسلم خپله صالح وه که طالح وه که ويلي چې طالح وه نو هم نه شو ويلي که ويلې چې صالح وه نو څنګه دې دروغجن دي که نه دي ده خو صالحين ياد کړي صوفيه خو يې نه دي ويلي.

بيا شروع شو وايي د باړي حضرت صاحب مريدان ټوپونه ولې وهي ما ورته وويل هغوي خو ټوپونه نه وهي وايي نه په مانځه کې چغې وهي ما وويل چغې هم نه وهي وايي ما کتلي دي کنه ما ورته وويل چې ما هم کتلي دي کنه ته به يوه شپې ته تللې يې ما هغلته يو کال په دربار کې تير کړي نو ته به رشتيا وايي که زه چغې نه وهي نو دري واړه شروع شو وايي مونږ خو تا ته دروغ نه وايو مونږ تللي يو چې مانځه کې چغې وهي ما ورته وويل چغې وهي نه سوال دې غلط دي چغې ترې وهل کيږي وايي يا وهل کيږي يا يې وهي خو دغسې ده کنه ما وويل دې کې ډير فرق دي ته داسې مه وايه چې چغې ولې وهي ته داسې ووايه چې چغې ترې ولې وهل کيږي نو زه به جواب درکړم.

وايي ښه ولې ترې وهل کيږي ما وويل د خداى تعالى نور فيض او خشيت زيات دي پرې د خداى تعالى ډير ويريږي بس چغې کړي نو په خندا شو ما وويل سوال غلط کوي هغوي چغې په اختيار نه وهي بې اختياره يې وهي او په مانځه کې ژړا چغې آه اوه هدايه دي هم نه ده کتلې:

**فان اَنَّ فيه تأوه او بكى فارتفع بكاؤه فان كان من ذكر الجنة او النار لم يقطعهما لانه يدل على زيادة الخشوع.**

او ابن همام په فتح القدير کې ليکي وايي دغه عبارت چې هدايه کې مذکور دي دا الفاظ د بي بي عائشې صديقې رضي الله عنها دي دا فتوى د هغې ده هغه دا خبره کوي چې څوک

أنَّ اواز کوي انین نه دي تأوه اوه اوه کوي بلکې ژاړي دا ژړا اوازیې اوچت شي که من ذکر الجنة او النار وي مونځ یې نه فاسدیږي دلیل د زیادت خشوع دي .

بیا یې وویل چې دا سندونه ډیر زیات ورکوي هر چاته یې سند ورکړې وي نو ما ورته وویل چې دا اعتراض د باړي په حضرت صاحب کوي چې سندونه ولې ډیر ورکوي ما ورته وویل زه دربار کې ورسره یو کال کاتب د سندونو پاتې شوې یمه ما به سندونه لیکل کله لس (۱۰) کله پنځلس (۱۵) کله شل (۲۰) د شلو نه زیات ما نه وه لیدلي چې په یوه جمعه کې دې دا ورکړې وي .

ما ورته وویل چې دا اعتراض دې کله د حقاني په مدرسه کړې دي چې دولس سوه (۱۲۰۰) سندونه په یوه ورځ ورکوي ولې اعتراض پرې نه کوي وایي نه هغوي خو فنون ویلې وي همداسې خو یې نه ورکوي ټول سبقونه یې خلاص کړې وي بیا یې ورکړي ما وویل چې ته به ماته وښایي چې د نقشبندي اته (۸) سبقه دي چې باړي حضرت صاحب سبقونه نه وه ورکړي او سند یې ورکړو دلته هم سبقونه خلاص شي سند ورکړي هلته هم سبقونه خلاص شي سند ورکړي او که ته وایي چې نه دا ټول اولیاء نه دي نو هلته هم زه اعتراض کوم چې ټول علماء نه دي دغه وخت سره او نه د ټولو مطالعې جاري وي ها که تدریس یې وکړو په منتها کې بیا کیدې شي بنه شي نو دا تعصب دي چې صوفیه کرامو سره روان دي په علماء د علم ظاهر به اعتراض نه کوي او په علم باطن به یې کوي دا قلب کې چې ګوته کیدې الله الله دا کوم ځای کې راغلي ولې دا لوي آیت نه ګوري :

﴿أَلَا بِذِكْرِ اللَّهِ تَطْمَئِنُّ الْقُلُوبُ﴾.

او د خدای تعالی په ذکر کې اسم ذات څه شي دي الله دي دې نه بهترین اسم په اسما الله کې کوم یو دي نور خو ټول صفات دي دا اسم ذات دي :

﴿وَلَا تُطِعْ مَنْ أَغْفَلْنَا قَلْبَهُ عَنْ ذِكْرِنَا﴾

د چا زړه چې زمونږ د ذکر نه غافل وي د هغې اتباع مه کوه خو زړه ذکر کوي کنه .

﴿أَوَمَنْ كَانَ مَيْتًا فَأَحْيَيْنَاهُ وَجَعَلْنَا لَهُ نُورًا يَمْشِي بِهِ فِي النَّاسِ﴾.

کیدې شي چې وه هغه سړي مړ بیا مونږ ژوندې کړو او ده ته مو یو نور ورکړو چې نور

بنده کړي چې بنده یې کړه وایي لاسونه اوچت کړي ټولو لاسونه اوچت کړل وایي : قولوا لا اله الا الله ، د مسند فردوس حدیث دي ټولو دا کلمه وویلې نو دا خو مؤمنان وه دا یې ولې پرې بیا وویلې دا کوټې ته یې ولې راغونډول دا دروازه ولې بندوي دا اغیار ولې د مجلس نه باسي دا هماغه سبق دي د باطن د علم چې دغه وخت سره یې صحابوو ته نبي اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ تلقین ورکړو او عوام دلته نه وه ناست خواصو ته یې ورکړو.

او که هغه صوفي ستا په اسباقو اعتراض وکړي نو نه به بیا ورته صرف ثابت کړي نه نحوه نه منطق نه معاني نه بیان نه بدیع دا یو به هم ورته ثابت نه کړي نه دا طرز او نه دا طریق.

او که وایي چې په دې زړه کې دا ګوټي ورته ولې ګدي یولس (۱۱) احادیثو کې صحابه حکایت کوي نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ ضربني في صدري زه یې په سینه کې ووهلم دا څه شي وه دا په سینه کې ولې وهل دغه شان صحابه کرام چې رعب پرې راتلو نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ په سینه کې وهلي په یو مسئله باندې نه دي پوه شوي په سینه کې وهلي انشراح د صدر راغلي.

او زما خو خپله دا رایه ده چې مه دي څوک په پیر نازیګي نه دې څوک په پلار نازیګي او نه دې څوک په مشر او لیډر نازیګي هغه ناوي چې په خپله ښائسته نه وي څوک به یې څه کاندي ښائست د مور او نیا ، هغه سړي ځان نه جوړ کړي چې پیر په تاسې ونازیږي هغه سړي ځان نه جوړ کړي چې پلار په تاسو ونازیږي چې پلار دې څوک نه پیژني او خلک وایي چې دا د فلاني پلار دي ستا په وجه یې خلک وپیژني او چې حتی کې امام د مذهب درباندې فخر وکړي حتی کي محمد مصطفی صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ درباندې فخر وکړي چې دا هغه سړي وه چې زما دین ته یې خدمت کړې وه.

څه مو خیال دي چې ورځ د قیامت کې هره ډله د امام روانه وي امام قرطبي وایي یا حنفي یا مالکي او از به هم په کې کیږي امام ابو حنیفه رَحِمَهُ اللهُ په لکونو کروړونو خلک چې دا فقه یې ورته آسانه کړې ده او په شریعت عاملین د فقه حنفي دي او دا ټول د امام ابو حنیفه رَحِمَهُ اللهُ په لښکر کې د حشر میدان ته راشي او انبیاء عَلَيْهِمُ السَّلَامُ د عرش سورې لاندې په سټیجونو باندې ناست وي او دا عظیمه جنډه او لښکر ښکاره شي یا د امام شافعي یا د امام مالک یا د امام احمد رحمهم الله د نبي اکرم صَلَّى اللهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ خو به الحمد لله سترګې جیګې وي خو دغلته به دې مبارک څومره خوشحاله شي.

نبي عَلَيْهِ السَّلَامُ فرمايي يو پيغمبر عَلَيْهِ السَّلَامُ به د حشر ميدان ته راشي يو امتي به ورسره وي يو به راشي دوه امتيان به ورسره وي.

څه مو خيال دي چې د هغه په امت کې څه علماء راشي او هغه په کروړونو خلک ځان سره د حشر ميدان ته راولي په خپله اصلاح باندې نبي اکرم صَلَّى اللَّهُ عَلَيْهِ وَسَلَّمَ به، څومره فخر کوي په دغه شخص باندې دده مقام به هغلته څه وي او دا خلک به ده ته څومره په تعجب وي دغه شان شيخ د طريقت.

ختمه شوه مسئله د تصوف

بعون الملك الوهاب

